

# کندهار

۲
۱۳۵۰



په دې ورځو کې کندهار
ښاروالۍ د هرات په دروازه
کې دمیوند رستوران لویدیځ
پلوسړك باندې قیر واچاوه
اودغه سړك یې پوخ کړ .

په عکس کې دښاروالۍ دقیر
اچولودځانګې کارکوونکې
دقیراچولو په حال کې لیدل
کیږي.



په دغه عکس کې دښاروالۍ د
قیر اچولو د ځانګې رولونه
د میوند رستوران د لویدیځ
پلو په سړك باندې د فعالیت
په حال کې لیدل کیږي .

# د کندهار مجله

دامتیاز خاوند: دطلوع افغان نشراتی مؤسسه
دمسؤل مدیر وکیل: غلام محی الدین (ایوبی)

کندهار
میاشتنی خپرونه
ادبی، تاریخی، اجتماعی، علمی
اداره: دشهیدانو واټ
دتاسیس کال ۱۳۳۹
د دولسم کال دوهمه گڼه
پرله پسی گڼه ۱۲۸

کالنۍ بیه
په کندهار کی [۲۸] افغانۍ
دهیواد په داخل کی [۳۲] د
په دباندنیو هیوادو کی یو ډالر

د غویی میاشت
۱۳۵۰ لمریز کال

## ددې گڼې مضامین

# د مطبوعاتي او فرهنګي
## خدمت انکشاف

د کندهار د علم پالونکی، ادب او هنر روزونکی سیمه
چې د هیواد په تاریخ کې خپل خاص مقام لري، دا ایجابوله
چې دلته د مطبوعاتو په چوکاټ کښې په یوه مناسب وخت
کښې یوه داسې فرهنګي مؤسسه منځ ته راشي چې د طلوع

افغان او کندهار مجلې تر څنګ د دغې سیمې د پاره
د علمي، ادبي، هنري، تاریخي، دیني، اجتماعي او نورو
ګټورو کتابونو او رسالو د خپرولو د لارې طباعتي
خدمت سرته ورسوي، اوس دا دی د نیکه مرغه د کندهار
د کتاب چاپولو مؤسسه د دروسو وزرو افغانیو په ابتدائي

پانګه جوړه او خپل فرهنګي خدمت ته چمتو ده او به
خپلو ګټورو فعالیتونو سره به زمونږ د علم او ادب
پالونکو علمي تنده لیرې کړي.

دغې طباعتي مؤسسه لومړی ځل د تیر کال د پاره د
کندهار د خرقې شریفې تاریخي رساله پرښه کاغذ،

ښکلې قطعې او رنګه عکسونو سره په، پښتو دری او
انګلیسي ژبو چاپ کړه او دغه رساله د دې ځای د متدینو
خلکو او علاقمندانو ډیره خوښه شوه او زمونږ خلک په
دې هیله دي چې دغه مؤسسه د کولای شي په آینده کښې
د کندهار هغه ګټور آثار چې زمونږ پر ملي فرهنګ،
ولسي ادبیاتو، هیواد او سیمې پر تاریخ رڼا اچوي

او زمونږ د ولس علمي او ملي ادبي ذخیره راشتمنه کوي
چاپ او د لوستونکو د استفادې د پاره وړاندې کړي.

دغه مؤسسه به د علمي آثارو او عصري معلوماتو
او نورو ګټورو ژباړو په خپرولو سربیره د دغې سیمې

د پښتو شاعرانو او ادیبانو لکه رحمت الله بابا،
عبدالسلام شاعر، ملا عبدالمنان، مرحوم لوی مخلص او
داسې نورو هغو کسانو د ژوندانه حالات او د اشعارو
دیوانونه خپاره کړي چې اوس یې اشعار د خلکو په

حافظو کې دي او ورو ورو د یاده وځي او که هغه را ټول
او چاپ نه شي زمونږ د ملي ادب د پانګې د پاره لویه
ضایعه ګڼله کیږي.

هغه کسان چې د خپلې دغې طباعتي او فرهنګي
مؤسسې او مطبوعاتو سره د دغو کسانو او د اوچتو ولو نورو
د نوموړو کو علمي او ادبي شخصیتونو د ژوندانه د حالاتو
د راټولو او آثارو د خوندي کولو په هکله مرسته کوي
هغوی د یوې خوا په دغه ستر ویاړ او ملي خدمت کښې

ګډون کوي چې د دغې لارې څخه زمونږ د هیواد والو
په برخه کیږي او د بلې خوا د دغه طباعتي مؤسسه په خپل
ملي او فرهنګي خدمت کښې نوره هم تشویق او بریالی
کوي.

د کندهار د کتاب چاپولو مؤسسه چې یوه تصدیه
ده د دې سیمې د علم پالونکي والي ښاغلي محمد صدیق په
پاملرنه او د کندهار ښاروالۍ، حساسو کسانو او دولتي
مطبعې د ریاست په مالي مرسته منځ ته راغلې او یوه عالي

شورا لري چې رئیس یې د دولتي مطبعې مدیر دی، عالي
شورا د مؤسسې ټولې اداري او مسلکي چارې پرمخ
بیائي او عامل هیأت ټاکي.

په کندهار کښې د کتاب چاپولو د فرهنګي مؤسسې
منځ ته راتګ یو ستر اقدام دی چې د دې ځای د مطبوعاتي
او فرهنګي خدمت د انکشاف په لار کښې اخیستل شوی دی

او که دغه مؤسسه په خپل هدف کښې بریالۍ شي او خپل
علمي خدمت د ګټورو پروګرامونو او سنجش د لارې
پرمخ بوزي او د کندهار د علم پالونکي خلک د دغې
طباعتي مؤسسې د چاپ شویو آثارو څخه د خپلو معلوماتو

زیاتولو او شخصي کتابخانو د ښکلي کولو لپاره
زیاته استفاده وکړي نو باور دی چې د کندهار د کتاب
چاپولو مؤسسه به ورو ورو په دې توفیق ومومي چې
د دغې سیمې د پښتنو نیو او اوسنیو شاعرانو او ادیبانو د

ادبي او نورو علمي آثارو خپرولو تر څنګ د فقهې شریفې
ضروري مسایل، شرعي احکام او داسې نور دیني کتابونه
چاپ او د لوستونکو د علمي استفادې لپاره وړاندې
کړي.

( پوهې )

د اقتراح دوهمه برخه:

ښاغلی ژواك:

# ادب یعنی؟

په تیره مقاله کی مو د ادیب میخانیك حال ښی وڅیړه داوی نن دا برخه ښی څیړل غواړو چی ادیب په ډاینامیك حالت کی د کومی اغیزې خاوند دی.

**لږ توضیح:** دلته د ډاینا میزم څخه د ادیب ذاتی اغیزه او د میخانیك حال څخه پر ده د محیط اغیزه مراد ده چی په فعلیت او انفعال سره هم تعبیر بدلای شی.

څیرا موږ ووېل: ادیب د ټولنی جوړ کړی نقش دی مګر دلته دا سوال پیدا کیږی چی ادیب ښځیل موثریت کی څه ډول رول لری که نه؟

موږ هیڅ دا نشو ویلای چی ادیب یوه ځنه عنصر دی چی اصلا هیولا ونه لری دا خبره اصلا باید و مقالی دو یو نکی په ذهن کی و نه ګرځی.

ادیب لکه څرنګه چی د جامعی په جوړونکی قدرت کی یو برخه ده، په همدی شان دی هم دلته نقش لری او ځنه دا دی:

ادیب د ټولنی د کړو وړو هنداره ده، دا هنداره د محیط څوونه د ځپل استعداد په اساس کولای شی مثلا که د ده سره د مذاق او ځنه مذاق چی ده ته د طبیعت جوړښت ورکړی دی تقاضا دا وی چی جامعی ته د برشا تلو یا سا کن پر بښودلو، یا پر مخ بیولو امر کوی، دا توان تر یو حده لیری او بی اغیزې نه بلل کیږی، مګر د ده دغه کار د ټولنی د کړو وړو څخه مجرد نه بولی حتی دلته لا کله د ادیب نقش ځنه رنګ هم ښودلای شی چی دی د ځنه اراده نه لری.

د مثال په ډول بالزاك د ځپل ریا لستی په ایجاد کی ځیله همدغه لار اراده نه بولی بلکه د ده سره د رومانتیك لاری عکس العمل دا کار وکړ چی دی نن د ریالیزم پلار بلل سو یدی.

دا تاریخی ثبوت موږ ته دا ښئی چی د ادیب عکس العمل ولو که آزادی هم نه وی پر ټولنه او د ټولنی په روش کی موثر ثابتیدلای شی.

دا ډول ثبوت موږ دا دیب په اغیزه په خبر دی.

هو ګو د رومانتیزم یا تخیل او احساس د اصالت پلار بلل کیده مګر و روسته، و روسته دې د پارناس یا هنر د هنر د پاره غوښتونکی پلار و باله شو. یعنی په ځنه وخت کی چی د پر زژ وازی عروج او سیلاب روان دی، دی د ادب او متقاضی روش پر ضد یو قدم ایښی دی او دا قدم موثر هم ثابتیږی دا ځکه چی ادیب هم یو ډاینامیك لری او دا ډاینامیك هسی په سپك نظر کتل د واقعیت څخه لیری باله شی.

بیاهم موږ دا خبره په تجریدی نظر نه ګورو او وایو چی دلته د دواړو اغیزه د فعل او انفعال په صورت شته چی هیره باید نشی.

بیاهم دا خبره د څیړنی وړ ده او دادی ښاغلی ادیبان دا بولو چی د وی څه وایی؟

او دا پوښتنه ځپلو څوا نانو ته پریږدو چی د وی څه وایی!

---

لږ هری خوا:

## کوچنی هیواد

د نړی کوچنی هیواد د «لیختن اشتاین» هیواد دی چی ۱۵۷۵۲ تنه یکښی اوسی او ۶۲ کیلو متره پراخوالی لری.

## کوچنی سیاره

د شمسی نظام کوچنی سیاره «پلوتون» نومیږی چی په ۱۹۳۰ کال کی کشف شوی ده او د ځمکی د کرې څخه د ځنه فاصله ۳۵۷۵ ملیونه میله اټکل شوی ده.

## د نړی کوچنی پارلمان

د نړی تر ټولو کوچنی پارلمان د «لیختن اشتاین» پارلمان دی چی یوازی ۱۵ تنه غړی لری.

---

## د نورو افکار

سختی او خواری، د سړی د عقل او فکر حاصل ډیره وی.
(ناپلیون)

د میړه وضعیت په سختی او نیکمرغی کی پوشان وی.
(ناپلیون)

اختر محمد د سرې میاشتې مشاور:

# د سرې میاشتې او سره صلیبونو ټولنې

ګرانو لوستونکو او هېوادوالو ته به ښه ترا څرګنده وي چې د نړۍ په زیاترو هېوادونو کې یو ښه دواج او نیک معمول سته څه دادی چې د اجتماعي، خیریه او عرفاني چارو د پاره اکثره د مودو ورځ د ښوونکي، کاګرو او روغتیا دو ورځو په څېر ورځې ټاکل شوي او هر کال د دې موضوعاتو په شا وخوا کښې بیانیې ورکول کېږي او محفلونه جوړېږي او په هغه مسایلو رڼا اچول کېږي نو د دغه معمول سره سم د سرو میاشتو سره صلیبو او شیر خورشید سرخ د خیریه چارو له پاره هر کال یوه مهاله ورځ ټاکل شوې ده چې هغه ورځ اتمه دمې او د ثور د اتلسمې نیټې سره برابره تثبیت شوې ده او د هغه شمار سږ کال «د سره صلیبونو، سرې میاشتې، او شیر خورشید سرخ هر ګړی ستاسې په خدمت کښې ولاړ دي» تعیین شوی ده.

حقیقتاً دا موضوع یا شمار د دغو لویو خیریه او بشري ټولنو د پاره ډېر مناسب او د شانه سره ده یو برجسته شمار دی ولې چې موږ وینو او اورو چې د سره صلیبو او سرو میاشتو خدمتونه او کومکونه تر کمې اندازې پورې مؤثر او دوام لرونکي دي د دوی همکارۍ او کومکونه که په داخل کې د هېوادونو یا ها خو اته تر سرحد ډېر دستاینې او قدر وړ دي ځکه به دې پر آشوبه او ناآرامه نړۍ کې تل د انسانانو تر منځ جګړې، دښمنۍ او آسماني فلاکتونه او مصیبتونه لیدل کېږي د نایجریا آشوبونه، د ویتنام جنګونه د ختیځ پاکستان لوی سیلاو او کورنۍ اړ ودوړ د ایران، جنوبي امریکا او ترکیې زلزلې او داسې نورې پېښې په ستاسې د یاده نه وي و تلي او د سره صلیبو او سرو میاشتو دوام کرونکي خدمتونه او زحمتونه به موهم نه وي هېر شوي په هر حال د دې لوړې مفکورې او نیکي همنوعي په باره کې ټول آسماني او مقدس کتابونه ډک دي خو د اسلام پاک دین خو دا ډېر اهمیت ورکړی لکه د پنځو بناو څخه د دې دین یو هم (زکات) دی چې هغه هم پېژلو ته د جنسي او مالي کومک څخه عبارت دی سل کاله پخوا یو بشر دوسته لوی انسان «هانري دونانت» د دې لوړې مفکورې او بشري غاټۍ ته د یو بین المللي بشري قانون شکل ورکړ او تر سلو ډېرو هېوادو دغه قانون لاسلیک کړ او په خوښۍ سره یې ومانه نو په دې توګه سره یو ستر جهاني سازمان منځ ته راغی.

زموږ افغاني سره میاشت هم د دې لوی بشري او انساني سازمان یو صادق او فعال غړی دی.

تقریباً شل کاله د مخه زموږ ګران هېواد افغانستان هم د دې نوموړي مفکورې د سمامنته وکړه او د هغې څلور ګوني مرتب پروتو کولونه یعنی «د جنګ د زخمیانو، د جنګ د بندیانو، د ملکي وګړو او محاربو طبقو لکه کوچنیان، ښځې، سپین ږیري او د بحري زخمیانو حمایه» یې لاسلیک کړل تر اوسه پورې د افغاني سرې میاشتې ټولنې زموږ د خیر غوښتونکو خلکو په مرسته او د رهنمایانو په لارښوونه سره هر کال د ستاینې وړ او با ارزښته خدمتونه او مرستو ته کړېدې سرې میاشتې یواځې په ۱۳۴۹ کال کې تر ۱۳ ملیونو افغانیو ډېرې داخلي او خارجي مرستې کړي دي د غه مرستې د خوړلو شیان، د اغوستو کالي، دواوې او نور نغدي او جنسي مرستو څخه عبارت دي دغه مرستې قوله یې له کوم تبعیض او امتیاز د بشر د ژوند د بقا او د عفو د ځمو او دردو د ښه کېدو او سپکېدو پر اساس متکي دي.

په زیاتره هېوادو کښې د نړۍ نور ښاري او محلي خیریه تشکیلات لکه دارالمساکین، دارالایتام، دارالشفقه، دارالتادیب او نور دا سې تأسیسات هم سته چې عموماً د محلي او ښاري سوداګرو او شته منو له خوا تمویل او اداره کېږي که څه هم دغه تشکیلات په اصلي غایو او مقاصدو کې له سرو میاشتو سره چندان ښکاره توپیر نلري خو د تشکیلاتو د پراختیا او د مرستو د دوام او شکلو له مخې ډېر فرق سره لري.

په ځینو هېوادو کې دغه تشکیلات د سرو میاشتو تر پېر غلاندې اجراآت کوي او په ځینو سیمو کې د ښاروالۍ تر اثر لاندې یاد ییلو کمېټو په لارښوونه سره اقدام کوي حال دا چې سره میاشت د جهاني (بین المللي) پرېښودو سره سم په هلې د ځینو اد زیاترو قیدو شرط لکه مالیه، ګمرک او نورو موانعو او محدودیتونو څخه خلاصه ده حتی منسوبین او خدمتګاران یې د جنګ په میدان او نورو موادو کښې پوره امتیازات او آزادي لري.

غلام فاروق «الوزي»

# عصري کمالات

دبشر نننۍ پرمختګ او د ساینس او تکنالوژۍ انکشاف چې د نن ورځې د ټولو انسانانو د لوړتیا او د بشري ټولنو د ارتقا سبب شوی دی. د عصري پوهنې او کمالاتو له برکته منځ ته راغلې چې بشر ته یې نه یوازې د ځمکې د مخ د تسخیر واک ورکړی دی بلکې د سیندونو د تل څخه د بشري ټولنو د استفادې د پاره کار اخستل کیږي.

---

د اوسنۍ نړۍ بشري ټولنو د عصري کمالاتو په رڼا کښې د سپوږمۍ کرې ته د بشر د تللو امکان برابر کړی دی چې دا کار یوازې او یوازې د بشري ټولنو د پوهنې او لوړو کمالاتو کوشش او زیار نتیجه ده چې نن ورځ یې بشري ټولنې د سر په سترګو وینې.

د اوسني عصر د بشري ټولنو د ژوندانه د چارو سمون، نیکمرغي ارتقا او ستر موفقیت د نړۍ د پوهانو او د کمالاتو د خاوندانو د زحمت کښلو او زیار ګاللو ثمره ده، چې بشر ته یې ادبي د علم او کمال په برکت د تخنیک له پلوه خورا قدرت ورکړی دی، د

لوی غرونو د ژورو سیندونو کول د سیندونو مخه ګرځول د ځمکې او غرونو د ځیګر څخه د ارزښت قیمتي کانونو او پټرولو د را ایستل

د بې سیم ټیلفون، تلګراف، تلویزیون، هلیکوپټر، الوتکې او داسې نورو شیانو اختراع او په کار اچول چې د بشري ټولنو د هوساینې، آرامۍ او نیکمرغۍ په لاره کې شپه او ورځ خدمت کوي او نتیجه یې په بشپړ ډول هر انسان ته روښانه او ځرګنده شوې ده.

د پورتنۍ بیان څخه ځرګنده شوه چې د انسانانو نیکمرغي او کامیابي یې له عصري پوهنې او کمال څخه امکان نلري ځکه چې

د انسان او د انسانیت د مقام او حیثیت لومړی شرط علم، پوهنه او کمال دی.

په نننۍ عصر او زمانه کې ناپوهي، بې کمالي او لټي د یوې ټولنې د انسانانو د تباهۍ او بربادۍ سبب کیږي او هیڅکله

داسې ټولنې او انسانان د ژوندانه په ډګر کې د بریالیتوب پړاو ته نه رسیږي.

او نه په ناپوه او لټ انسانان د ژوندانه په ډګر کې د انساني کرامت او فضیلت خاوندان شي.

نن ورځ هغه انسانان او ټولنې ځانونه د بربادۍ؛ و بیرته پاتې کیدو څخه را ګرځولای شي چې د عصري پوهنې او کمالاتو په روښانه ډیوه سمبال شوي وي.

د ناپوه انسان زیان او ضرر یوازې پخپله وده ته نه دی متوجې بلکې په ټولنه کې د ناپوه او بې کماله انسانانو وجود د یوې ټولنې د بیرته

پاتې کیدلو او ځنډیدلو سبب ګرځي نو باید هر انسان د خپل ژوند د هوساینې او نیکمرغۍ د پاره تر هر څه د مخه د پوهنې او عصري کمالاتو په رڼا کې د ناپوهۍ او بربادۍ د ظلمت څخه ځانونه وژغوري.

نن په نړۍ کې هغه ولسونه او ټولنې د لوړتیا پر لور او چټ ګامونه پورته کوي چې د هغو د ټولنې څخه د بیسوادۍ ناروغۍ او ځانځانۍ خطرناکو د نځونو کوچ کړی وي.

د پرمختللو ټولنو انسانانو د عصري کمالاتو په رڼا کې د بیسوادۍ ناروغۍ، لټۍ او نورو اجتماعي مفاسدو د منځه وړلو په لاره کې مبارزه کړې ده.

د کوشش، زیار او زحمت ګاللو په نتیجه کې یې د خپلې ټولنې اجتماعي نیمګړتیاوې لیرې کړې دي.

نو راځئ چې موږ هم د عصري کمالاتو په لاس ته راوستلو سره د هیواد او ولس په اجتماعي خدمت کې تر شخصي ګټو اجتماعي ګټو ته ترجیح ورکړو.

نن چې زموږ ګران هیواد د انکشاف په حال کې دی او زموږ غواړو چې د هیواد په ټولو چارو کې ستر تحول او ارتقائي بدلون راشي نو

پر موږ لازمه ده چې د خپلو ځانو او ټولنې څخه د اجتماعي فسادونو هغه عوامل او نیمګړتیاوې لیرې کړو

کوم چې زموږ د هیواد د ترقۍ او پرمختګ خنډ ګرځي. د هیواد

«نور په ۷ مخ کښې»

ژباړونکی محمد علي «خواجه»:

د خارجي مطبوعاتو څخه:

# آيا د مریخ سپوږمیانې مصنوعي دي؟

د مریخ د مصنوعي سپوږمیانو موضوع له هغو عجیبو نظریو څخه ده کوم چې تر اوسه پورې د دغه له اسرارو ډکک ستوري په باره کښې وړاندې شوي ده .

په حقیقت کښې هر کله مریخ د ځمکې د خلکو لپاره د نکلونو منشا او له هغه ځایه څخه چې حیرانوونکي او له اسرارو ډکک ډېر موارد د دغه نجومي ستوري په ظواهرو کښې شته د هغه په باره کښې ډول ډول نظریې وړاندې شوي چې د دغه د سپوږمیانو نه طبیعي والی هم یوه له هغو نظریو څخه دی .

دا نظریه د روس مشهور ستوري پېژندونکي اشکولفسکي پورې اړه لري، چې د مریخ او د ځینو نورو ستورو د ځېړنې او نظریې له کبله د خپل هیواد د پوهنې او ملي نښان په لاس ته راوړلو باندې سرلوړی شوی دی.

سږ پیره پر هغه شوروي پوهانو او په پای کښې امریکا هم په دغه مسئله کښې خبرې اترې کړې چې د هغو له جملې څخه باید لومړی د شوروي اتحاد د علومو د اکاډمۍ غړي ولادیمیر فستنگن یادونه وکړو هغه وائي چې مریخ دوې سپوږمۍ لري چې یوه فوبوس او بله ډیموس نومېږي چې د دواړو اوږدوالی له ستوري څخه لږ او په عین حال کښې ډېر لږ قطر هم لري .

(لومړی صرف ۱۰ - او ۱٦ - میله) چې نسبت نورو سپوږمیانو ته په څه معلومېږي .

اشکولفسکي او نور همفکران ئې باور لري چې دا دوې سپوږمۍ مصنوعي دي او په قوي احتمال سره په مریخ کې د اوسېدونکو پوهانو په وسیله چې تر دغو وروستیو وختو پورې موجود و او د احتمال له مخې دوی

او تمدن ئې په نامعلوم علت سره له منځه تللی، جوړې شوې دي، دوی د دغې نظریې د اثبات لپاره لومړی د هغه عکس رد وي .

په دغه ترتیب چې وائي که چېرې د مریخ او د نورو ستورو سپوږمیانې طبیعي وي یا دا چې پخپله د ستورو څخه جلا شوي یا د خارجي فضا څخه راغلي او د ستورو د جاذبې قوې لاندې شوي او د هغو په شا وخوا باندې په چورلیدلو باندې پیل کړی، خو علمي ډېرې نښې نښانې دا څرګندوي چې په لاندنیو دلیلونو سره د مریخ

سپوږمیانې نه پخپله د مریخ څخه جلا شوي او نه د خارجي فضا څخه راغلي دي .

۱ـ که چېرې هغوی د ستوري څخه بېل شوي وي د میکانیک او هیئت د قوانینو له مخې لازمه ده چې ورو ورو

د ستوري څخه لیرې شي (لکه څنګه چې د ځمکې د سپوږمۍ په باره کښې هم دغسې ده او سپوږمۍ د هغه حساب له مخې چې شوي ورو ورو له ځمکې څخه لیرې کیږي) حال دا چې د مریخ سپوږمیانې له مریخ څخه نه لیرې کیږي بلکه

هغه ته نژدې کیږي، اشکولفسکي حساب ورته کړی چې د مریخ لویه سپوږمۍ ۵۰۰ ملیونه کاله پخوا د دغه ستوري په هغه فاصله کې قرار درلود چې د مریخ د یوې شپې ورځې د مودې په اندازه یوه پلاوه باندې چورلی، له همدغه

ځایه ئې نتیجه اخیستې ده چې د (فوبوس) عمر باید ۵۰۰ ملیونه کاله وي او په همدغه علت سره نشي کولای چې د مریخ څخه بېل شي دا ځکه چې په هغو وختو کښې مریخ ۵۰۰ ملیونه کاله مخکښې د ځمکې په شان یوه کلکه کره وه او دا په منطقي خبره نه وي چې ورا یو دغسې شی به بېل شوی وي .

۲ـ که چېرې د مریخ سپوږمیانې له خارجي فضا څخه راغلي وي (په دغه ډول، طبیعي وي) لازمه ده چې په ځلیدونکي مدار کښې د ستوري پر شا وخوا باندې وچورلي . حال دا چې د دغو دوو سپوږمیو مدارونه

دایروي شکل لري او په همدغه دلیل ممکنه نه ده چې دوې د ستورو د لومړنیو وړیځو منشا منبع ته راوړې، پیدا شوې وي .

دا ځکه چې په دغه ترتیب سره، لازمیدله چې بیضوي

شکل مداردونه دي ولري .

۱- د مریخ سپوږمیانې مصنوعي دي.

۲- ۵۰۰ ملیون کاله پخوا پیدا شوي دي .

خو په وروستيو وختو کښې دا نظریه د نورو پوهانو له خوا لکه فسوروو زیګل چې خپلې نظریې یې په هغه کتاب کښې چې د اوږ نو له مخه یې برده پورته کړې ی نوموړی ، ردشوي ده .

دا چه له خرګنده ده چې د مریخ سپوږمیانې مصنوعي دي خو د اشکولفسکي تر نظریې ډیره مخوا نه ده او د دغې نظريې د اثبات لپاره دالاندې دلیلونه وړاندې کوي.

د مریخ د سپوږمیانو مصنوعي والی په دې معنی دی چې مریخ د پوهو او متمدنو موجوداتو له خوا ۵۰۰ ملیون کاله پخوا جوړې او فضاته توغول شوي دي .

بو هیږو چې مریخ هم لکه ځمکه او نورو امریزو منظومې ستورو په شان یو زمانې ته سره نژدې منځ ته راغلي او دا په منطقي خبره نه وي که داسې فکر وکړو چې د مریخ اوسیدونکي موجوداتو د ژوند ځمکې تر تمدن ۵۰۰ ملیون کاله پخوا په داسې حال کي د ځمکې د شرایطو په نسبت په نامساعدو شرطونو سره ژوند تیر اوه د غسې حیرانونکي تمدن دي ولري .

هغوی هم لکه د ځمکې د خلکو په شان د پیدایښت، تکامل، د قولني سره سازکارې او د تمدن د مراحلو تیرولو ته اړ ؤ او دا به یو اشتباه وي چې فکر وکړو د مریخ د نړۍ د تحولاتو چټکوالی د ځمکې د تحولاتو تر چټکوالي دومره مخکښې ؤ چې ۵۰۰ ملیون کاله پخوا ئې تمدن دغه درجې ته رسیدلی ؤ چې موږ ئې ونه لاهم ورته نه یو رسیدلي .

سره خبره دا ده چې داسې فکر وکړو دوې ز موږ معاصر وو او د مریخ سپوږمیانې په دغه وروستيو وختو کښې فضاته توغول شوي دي، ځینې علمي دلیلونه هم شته چې د دغې نظريې په قبلولو کښې زموږ سره مرسته کوي .

۱- د مریخ سپوږمیانې په ۱۸۷۷ میلادي کال کښې کشف شوي او پخوا تر هغه هیچا نه وې لیدلي .

تر هغې زمانې پخوا د مریخ تر سپوږمیو ډیرې لیرې سپوږمیانې د تلسکوپ په وسیله لیدل شوي دي د مشترې د یو شمیر سپوږمیانو د کشفولو داستان ګالیله (که څه هم ځینې پیښې د دغه کشف سبب شوي) په ترا نابتوي .

که په رښتیا سره په هغه کال کښې د مریخ پرشاوخوا باندې سپوږمیانې موجودې وای نو حتماً لیدل شوي

بههم وای . نو د فوبوس او دیموس د پیدایښت څخه صرف سل کاله تیر شوي دي.

۲- د مریخ سپوږمیانې د خپل حجم او ناچیزې سطح سره سره نشي کولای چې د فضائي سوزونکو او دایمي اجرامو د رژیدلو په مقابل کښې دوام ولري .

«زیګل» حساب ورته کړی که چیرې (اشکولفسکي) نظریه سمه وای او په رښتیا سره د مریخ سپوږمیانو ۵۰۰ ملیون کاله عمر درلودلای نو په دومره اوږده موده کښې به هرو مرو د داسې ستورو د رژیدلو هدف ګرځیدلې وای چې دیوه فضائي جسم د منځه وړلو لپاره ۰۰۰٫۰۰۰٫۰۰۰٫۱۰۰۰ ټنه وزن کافي دي ،

په داسې حال کې چې فوبوس لوړه درجه ۸۰۰٫۰۰۰٫۰۰۰ ټنه وزن لري معنی دا چې د ۵۰۰ ملیون کلونو د رقم څخه ئې عمر زدوار له ئي دی کوم چې اشکولفسکي پیشنهاد کوي . وروسته بیا زیګل د مریخ د سپوږمیانو عمر پخپله محاسبه او استدلال سره د سلو کلو شاوخوا ته رسوي او وائي دغه دوې سپوږمۍ ښائي یوه پیړۍ پخوا د مریخ د پوهو او متمدنو اوسیدونکو په لاس فضاته توغول شوي دي :

په دې لړ کې ځینو نور دلیلونه هم شته، دا ئې په ډېر بوړې دي چې وائي د مریخ د سپوږمۍ منځ کوګ (خالي) دي نو له همدغه کبله مصنوعي دي ، خو اساسي مسئله دا ده چې د مریخ احتمالي اوسیدونکو به ښائي څنګه غښتلي او دبرمه ډ کړ تمدن څخه استفاده کړی وي چې دغه به وسیله ئې وکولای شول دغسې سپوږمیانې فضاته وتوغوي، وروسته ددې پوښتنې جواب اسانه دي پروفیسور محسن هشترودي عقیده لري چې د اقومي موشکانو په وسیله کیدلای شي چې د مریخ تر سپوږمیانو لوی لاهم فضاته وتوغول شي، پروفیسور هشترودي د دغه پوهانو له جملې څخه دي چې د زیګل د نظریو سره موافق دي .

دا چه له پوهان د غه مهم ټکي ته اشاره کوي چې وخت ناوخت د مریخ پر سطح باندې کم دوامه خو ډیره ځلیدونکي رڼا لیدل کیږي چې په ۱۹۳۷،۱۹۵۴-۱۹۵۹،۱۹۶۳ کلونو کښې د ډیر شمیر پوهانو په وسیله په قوله نیې کښې ضبط شوي (د هغو له جملې څخه المانی «یولیوس ګونتر» جاپاني «ساآکي» «امریکائي» «دابرتسن» په وسیله) د معمول سره سم تر هر نا بش وروسته د رڼا په څای کښې کوچنی وریځې پیدا کیږي چې د قاره دو دیځو سره اټومي چاودنو ته ورته والی لري .

په هر صورت دا مسئله هم د هغو موضوع ګانو له جملې څخه ده چې ښائي دانسانانو دوه تنګ پوړي مریخ ته او له نژدې څخه د حقایقو تر لیدلو پورې هغسې په پرده کښې پټ پاتې شي .

(پای)

د محمد عظیم «هوشمند» څېړنه او لیکنه :

بوهنه او روانشناسي :

# ارګانیزم

د ارسطو په څېر نامتو پوهانو بشر ته د علمي تحقیق لارې څرګندې کړې دي .

خو هغه تصورات چې موږ یې د فیزیولوژي په باره کې لرو د هغو مستقیمو مطالعاتو نتیجه ده چې بېلو، بېلو عالمانو د انسان په باره کې په تېره بیا پدې وروستیو وختو کې د انسان د کړو او سلوك په هکله سرته رسولي دي.

د ۳۰۰ ق م کلو په شاوخوا کې د انسان په باره کې څېړنه او تحقیق ممنوع و .

د ۳۰۰ ق م څخه بیا تر ۵۰۰ کلو پورې د انسان د بدن په باره کې ډېر تحقیقات وشول او د جالینوس په عصر کې (۱۳۱م-۲۰۱م) نوموړي څېړنې خپلې وروستۍ درجې ته ورسېدلې، لیکن د دکارت تر وخته پورې یې (۱۵۹۶-۱۶۵۰م) چنداني پرمختګ په برخه نه شو .

د کارت د ارګانیزم په باره کې داسې تصور کاوه چې د انسان بدن یوه پېچلې او مغلق ماشین ته ورته دی چې د نور، صوت او نورو محرکاتو په واسطه تحریك کېږي .

د کارت عقیده درلوده چې هغه اعصاب چې د حسي آلاتو څخه ماغزو ته او د هغو څخه بیا عضلاتو ته ځي د نازکو لولو څخه عبارت دي او د هغو د ننه څخه چې د کارت ورته (حیواني لکۍ) وایې جریان لري .

د دې مادي جریان د هغه فعالیت نتیجه ده چې په حسي آلاتو کې د صوت، نور د فشار او نورو په واسطه سره منځ ته راځي . نو کله چې (حیواني لکۍ) د دې لولو له د ننه څخه عضلاتو ته رسېږي، عضلات منقبضه کېږي . او کله چې نوموړې لکۍ بېرته راګرځي عضلات منبسطه کېږي .

د کارت د انسان د بدن په باره کې ویلي دي چې : د دې ماشین وظیفه په طبعې ډول د هغه اجزاؤ د خاص نظم او ترکیب په نتیجه کې کوم چې لري یې تعینېږي ،

او کټ مټ د ساعت د ماشین او داسې نورو ماشینو په شان دی، نو پدې اساس د انسان د بدن او د هغه د حرکتو د پېژندنې لپاره هیڅ ضرورت نشته چې د روح او یا بل حرکت ورکوونکي تر مطالعې لاندې ونیسو .

اما د کارت د نفس په موجودیت معترف او پدې عقیده و چې نفس کولای شي چې د بدن پر مکانیزم باندې تاثیر واچوي او د نفس تاثیر پر بدن باندې د کاجې د غدې په واسطه سره چې د مغز لاندې ځای لري صورت نیسي .

که څه هم د کارت معلومات د عصبي دستګاه او د هغه د عکس العمل څخه ډېر لږ و، اما نور څېړونکي یې دې ته متوجه کړل چې دا امکان موجود دی چې د

انسانانو تجربې او د رفتار د عصبي جریانانو د مطالعې له لارې وڅېړل شي .

خو وروسته له ډېرو کلو نوموړې مفکوره قبوله شوه او علمي بڼه یې غوره کړه، او د قبایدو علت یې هم هغه پرمخ تګونه وه کوم چې د فلسفې فزیك او فیزیولوژي علومو په برخه شوي وه .

د نړۍ د نامتو شخصیتونو نه :

## آن سیناژان دولا

یو هسپانوي ډراماتیك شاعر دی چې په ۱۴۶۹ کې زېږېدلی دی او د ۱۵۳۰ کال په شاوخوا کې مړ شوی دی .

نوموړي ډرامه لیکوالکې په ۱۵۰۰ کال کې د یو څو خندونکو ډرامو په واسطه خپل ځان معرفي کړ ، وروسته بیا ایټالیې ته ولاړ او د مذهبي اشعارو یوه مجموعه ځنې پاته شوه .

آن سینا د شعر او صنعت په شاوخوا کې یو کتاب لیکلی دی .

(د ۴ مخ پاته)

## عصري کمالات

د سرلوڅۍ او آبادۍ لپاره هر ډول زیار او فداکارۍ ته ځانونه چمتو کړو د هیڅ ډول زیار او زحمت څخه ځانونه ونه سپمو ترڅو چې زموږ د قولني څخه د فقر بېسوادۍ، او ناروغۍ آفتونه لیرې او ورک شي او په دې لار کې مثبت او ګټور ګامونه مخ په وړاندې او چت کړو .

ښاغلی کرام الدين د کندهار څارنوال:

# د بودجې د تنظيم روشونه

په اوسني عصر کې د بودجې تنظيم او ترتيب د اداري مشکلاتو څخه يو مشکل دی او لومړی بايد څرګنده شي چې د بودجې د پوره کولو له پاره د کومو منابعو څخه څه ډول پيسې راټولې شي او بيا دغه پيسې د دولت د بېلو بېلو ملي، اجتماعي او فرهنګي او نورو هدفونو د تحقق او تأمينولو د پاره څنګه په کار لوېږي؟

زه دلته په دې مضمون کې پر دې خبره بحث نه کوم چې بودجه څه شی ته وايي، حقوقي حيثيت يې څنګه دی، د بودجې بودوالی څه شی دی، يا د بودجې اجرا او کنټرول د چا له خوا کيږي، يا داچې عادي بودجه څه ته وايي، انکشافي بودجه کومه او څرنګه تنظيميږي؟

زما اوسنۍ څيړنه او بحث دلته يوازې د بودجې د تنظيم او روشونو په هکله دی.

په دې وروستيو وختونو کې د نړۍ په ټولو دولتونو کې د بودجې د تنظيم په روشونو او کنټرول کې ډېر پرمختګ راغلی دی، او دا روشونه ډېر علمي اساس لري، او د دغو علمي روشونو د بودجې تنظيم، کنټرول

عمومي لګښتونه او هغه نتيجې چې په دولتي مؤسسو کې لاس ته څنې راځي ډېر اسانه کړي دي.

په دې وختونو کې په ټوله نړۍ کې د ټولو اداري مسايلو څخه يوازې د بودجې بحث د حکومتونو او اداري پوهانو توجه ځان ته ورجلب کړې ده.

د بودجې د کنټرول او تنظيم روشونه له دغه کبله خاص اهميت



د مضمون ليکوونکی

پيدا کړی او همدا رنګه د هېڅو دولتو او اداري پوهانو په نظر

کې بودجه يو مالي پلان دی چې په هغه کې د عوايدو د خرڅ پيش بيني کيږي او ټول عمومي لګښتونه تر نظارت لاندې نيول شوي دي.

خو په اوسني عصر کې د بودجې اهميت د پلانو جوړول او په هغو کې يو هم آهنګي او وحدت منځ ته راوړل او د دولت په

وظايفو او فعاليتو کې يو عمومي نظارت کول دي، زياتره کسان پدې پوهيږي چې بودجه يو پيش بيني شوې لايحه يا پلان دی چې په هغه کې د دولت ټول عوايد

او لګښتونه د يوه مالي کال لپاره حساب شوي دي نو اوس بايد موږ په څيړله څيړو نه او پدې بحث کې د بودجې د واقعي اهميت او د هغې تاثير د اجتماعي، سياسي او اقتصادي پلوه مطالعه کړو.

بودجه د مالي سياست له پلوه د اقتصادي حالت د تجزيې او تحليلولو يوه ښه وسيله ده پدې معنی:

چې د ملي او فردي عوايدو او د هغه د منابعو پيژندل، د بانکو تشکيلول د لګښتونو اندازه ټاکل او په ملي هدفونو کې د هغو څخه استفاده کول ټول اقتصادي سيستمونه په بر کې نيسي.

پخوا دا فکر کېده چې د دولت لګښت د خصوصي بانکو د کموالي سبب ګرځي يعنې هغه پيسې چې د دولت له خوا لګيږي بايد د خصوصي بانکو څخه راټولې او هغه کمې شي اما نن ډېر لږ کسان پدې فکر دي.

ځکه په ۱۹۳۸ او ۱۹۴۲ کلونو کې په امريکا او اروپا په لويديځو هيوادو کې دا خبره ثابته شوه پدې معنی چې:

د دولت د لګښتونو د زياتوالي له امله ډېر کسان په کار بوختيږي چې هغه خلکو ته د دې کار څخه نوي او زيات عوايد پيدا کيږي او دا طريقه د خصوصي بانکو د زياتوالي سبب ګرځي.

نو ځکه ثابته شوه چې هرڅومره چې د دولت لګښتونه زیات شي یعنې انکشافي پروژې تر اجرا لاندې ونیول شي په هماغه اندازه افرادو ته کار پیدا کیږي چې د هغه کار څخه پیسې لاس ته راځي او د ملي پانګو د جوړیدنو بنسټ او اساس ایښودل کیږي .

نو ځکه دولت د خلکو او افرادو د زیار او زحمت او کار څخه نوي د عوایدو منابع لاس ته راوړي چې دا عواید هم د دولت او هم د افرادو په ملي عوایدو کښې مهم رول لري .

په پورتني مثال کې مو ولیدل چې د دولت د لګښتونو زیاتوالی څومره د افرادو په حال کښې اقتصادي اهمیت لري یعنې له یوې خوا عمومي بیکاري لیرې کوي او له بلې خوا د هیواد افرادو ته د عوایدو نوې منابع پیدا کیږي .

نن د عمومي لګښتونو او اقتصادي جهتونه د ماليې د علم تر سیوري لاندې چې د اقتصاد د علم یوه برخه ده مطالعه کیږي دلته کوم د وچې د بودجې د تنظیم د وشونه په دوه ډوله مطالعه کیږي یو ئې د سیاسي او اقتصادي پلوه او بل ئې د اداري وظایفو له حیثه .

د سیاسي او اقتصادي پلوه په دې شکل مطالعه کیږي یعنې هغه تصمیمونه چې د بودجې د پیسو تقسیمات چې په هغه کښې د بیلو بیلو هدفونو تر سره کولو لپاره نیول کیږي یعنې د دولتي هدفونو د تأمینولو لپاره پلانونه

جوړول اما د عمومي لګښتونو څه پیش بیني د پلانو د تر سره کولو لپاره دقیق کنټرول، وحدت او یووالی د دولت د بیلو بیلو فعالیتونو په لړ کښې، او یا نو داسې فعالیتونه د اداري تر بحث لاندې مطالعه کیږي پوهان وائي چې بودجه د قانون ګذارانو د قصد او نیت د عملي

کولو لپاره یوه وسیله ده یا بودجه هغه وسیله ده چې د هغې په واسطه د قانون ګذار ټول عالي افکار د قوې څخه فعل ته راګرځوي دلته نو دا دوه ټکي چې سیاست خطمشي د اداري څخه جلا کوي یعنې ویلای شو چې بودجه

د عمومي سیاست د اجرا کولو لپاره یوه لویه وسیله ګڼل شوې ده .

که څه هم دلته په دې بحث کې یوازې بودجه د اداري تر عنوان لاندې باید مطالعه کړو اما بیا هم مجبور یو چې یو په څو ټکیو کې بودجه د سیاسي او اقتصادي علومو تر عنوان لاندې هم مطالعه کړو .

دولت څنګه کولای شي یو داسې تصمیم ونیسي چې د بودجې یوه اندازه پیسې د جنګي سامانو په عوض کې د غریبانو سره کمکونه وکړي یا دا چې د دولتي عوایدو د ویشلو اساسي ټکي د عمومي هدفونو او لګښتونو په منځ کښې څه شي دي .

یو عالم وائي : که په ټولنه کښې یو تن د خپل کور د خرځ او عوایدو په منځ کښې یو ښه توازن ټینګ کړي دا جمله د دولت په باره کښې هم صدق پیدا کړي چې باید دولت هم د خپلو عوایدو او لګښتونو په منځ کښې یو ډول تعادل او موازنه وساتي یعنې هغه پیسې چې پخوا مو

وویل چې د جنګي سامانو د اخستلو لپاره ځای کیږي او یا هغه چې غریبانو ته ورکول کیږي باید د دواړو نهائي ګټه چې پکښې فکر کیږي و ځای کړل شي .

دا عمل د ټولو څخه په خصوصي پانګو کښې ډیر ژر معلومیږي اما د دولت په فعالیت کښې دومره ژر

نه معلومیږي دا ځکه هغه ګټه د یو تن لپاره حسابیږي او دا د ټولو افرادو د فعالیت تر سیوري لاندې وي .

نن د اقتصاد ټول پوهان دې خبرې ته ډیر اهمیت ورکوي چې بودجه څنګه تنظیم سي یعنې هغه پیسې چې د دولت عواید تشکیلوي په څه صورت دقیق حساب او هغه

لګښتونه چې دولت ته ور په غاړه دي اندازه شي او د هغو لګښتونو نهائي ګټه د دولت لپاره و ځای کړل شي دا د ټولو دولتونو لپاره یو لوی مشکل دی چې د بودجې پیسې څنګه د ملي مقاصدو تر سره کولو لپاره خرځ شي او یا هغه لګښتونه چې دولت ته ور په غاړه دي صورت د موی

نن وینو چې په زیاتره هیوادونو پنځه کلن یا اوه کلن اقتصادي پلانونه جوړیږي چې د ټولو مقصد او مرام د ملي عوایدو د زیاتوالي او د خلکو د بیکارۍ مخنیوی دی .

اوس په خپل اصلي مرام چې د بودجې د لایحې تنظیمول دی بیان کړو :

دا په ټولو ته څرګنده وي چې د بودجې لایحه څنګه د دولت له خوا تنظیمیږي او په څه شکل سره د پارلمان له خوا تصویبیږي دا مراحل د اداري له پلوه څنګه باید تیر شي ؟

(پاته په ۲۱ مخ کې)

د ژوندانه لار:                    د م، ناصر (نصرت) ژباړه:

# د کورنیو خوابدیو مخنیوی

که وګورو چې زموږ د ورځنۍ اجتماعي چارو تاوده بېشی، له خپلو هغو خواخوږو کسانو څخه چې کورته د ورتګ په وخت کښې ورسره مخامخ کېږو بدې کېږو، دا به ډېره مشکله وي ځکه کله چې کورته سر، ورننباسو هلته فقط زموږ په لیدو سره زموږ د پرېشانۍ او خفقان احساس کېږي.

موږ که په اجتماع کښې له خلکو سره کوم اختلافونه موږ، او بیائې شرح او بیان په کور کښې مثلاً یا کشر ته کوو چندانې ښه کار نه دی. او دشتیاهم داده چې بدې صورت ګواکي موږ په خپله دخپل کور د افرادو عاطفې او احساسات ورمړه او متأثر کوو، او بله دا چې موږ په خپله دخپل کور د افرادو د ډېر اوقات تلخیو منشأ شوي او په اصلي سبب ئې هم نه پوهېږو . په هرصورت چې وي باید دهغو دپېښېدو مخه ونیسو.

بوېښځې چې هر کله په ئې دخپل مېړه سهوي او خطاوې د دسترخوان پرسر ورته بیانولې او مېړه په ئې هم هغه آداب او حرکات چې دښځې د توجه وړ په وه ډېر ډېر ځله ورته یادول.

بوه ورځ دې دا سره خوښه کړه چې که موږ یوله بله کومه سهوه یا خطا وویښو دهغه ترهغه چې یواوبل ته ئې بې دریغه ووایو ښه به داوي چې په یوه ئې پر کاغذ یادداښت کړو او کله چې به نیمه شپه دخوب اطاق ته ځو، یواوبل ته ئې اظهار کړو.

تردې تصمیم وروسته ددوی یوله بله شکایتونه خودا لې شوی او خبره بیا دې ځای ته ورسېده چې هغه به په لیکنو هم نه ارزېدل، او یا دا چې به کورته داغلل غوښته ئې چې به لیکنه شروع وکړي په ځانو کښې به ئې دومره حوصله هم نه لیده چې یوله بله دلایل سره وړاندې کړي ځو آخر ئې له هغو څخه هم صرف نظر وکړ، او عجبه دا کله چې دوی به یوله بله دعیبو یادداښت کاوه، اود شپې به ئې

وغوښتل چې هغه دخوب په اطاق کښې یواوبل ته سره ووایې لهدې کبله چې د بوېخوا به دخوب وخت ؤ او دبلې خوا به د داسې خبرو موقع هم نه وه نو هر څه چې به ئې سره لیکلي وه هغه به بې ویلو پاته او هغه وخت به ئې په څو ګواو ساعت تېر یو سره تېراوه.

په همدې توګه دغې سلسلې ادامه موندله، او دغه سبب شو چې دوی په خپله دهغه ترهغه چې دیواوبل عیب ښکاره سي، سره خوښ او اصلاح شول.

نو ښه داده چې موږ هم خپل اختلافونه او مشکلات دهغه ترهغه چې پېښ سي حل کړو، او دغه ته ئې پرېنږدو چې موږ ئې تجزیه او تحلیل کړو، یعنې کوچنۍ خوشکه اولې قهر وي ځو په وروسته کښې ډېر قهر، کینه او د زړه غوټه ځني جوړه سي.

ځکه چې ډېری خوابدۍ او کدورتونه فقط او فقط پر یوه ناڅه خبره او موضوع باندې پېښېږي. دا زموږ عادت دی کله چې زموږ کار ونه سره بند، او وېچل سي په لومړي وهله کښې ئې نه سره خلاصوو ځکه چې په کوچنیو موضوعاتو او خبرو کښې دې نه وهو نوموږ ته ښایې په کوچنیو او کوچنیو موضوعاتو کښې چې سوء تفاهم واقع سي چې ښایې ئې وي.

باید ښکاره او فیصله سي او دې ته ئې پرېنږدو، چې هغه ډېر ووده وپېژنه کښې زموږ د احساساتو او عواطفو بنیاد ته لاغنه وا نجوي او هلته دېښه وځغلوي.

له خلکو سره به ګډ او اجتماعي ژوند کښې ښیله دې چې داخلاقو په قواعدو او آدابو په رعایت پابند او سو، ترڅو هیڅ شی زموږ د ژوندانه مشکلات له منځه نه بیایي.

موږ زیاتره دخبرو په وخت کښې د بین المللي سیاست، د انساني اخلاقو او آدابو د رعایت او لزوم څخه خبري کوو. لیکن

له نږدې کسانو او دوستانو سره به ژوند او ګذاره کښې دغه ټکی بالکل هېروو. موږ د سیاست باقي په عادت دخلکو دا قلیتو په حقوقو

کښې ډغېږو لیکن بالمثل دخپلو وړو کو دشخصیت او وړو کو رعایت نه کوو.

زموږ د کورنیو بداخلاقیو او

اختلافو يو علت هم دادی چې به کور کښې هيڅ فرد ته د احق نه ور کوو چې به يوازې سر دا وسي .

که موږ د خپلی کورنۍ هر فرد ته دا حق ور کړو چې به ۲٤ ساعته کښې لږ او ډېر يو ګړی يوازې اوسي

خو د استقلال او آزادۍ احساس وکړی، دغه کار اصلاً د مشکلاتو د حل، او د کار و د سمو الی لپاره به خپله يو تمهيد دی چې برخلاف ئې غالباً د کورنۍ د افرادو، د بداخلاقۍ او کدورت باعث شوی دی .

موږ هغه راشه، د رشه چې به نيو الی لاس او ياورين تندی ئې له خپلو دوستانو سره لرو بايد د کور له افرادو سره ئې هم ولرو .

که چيری زموږ يو دوست، او ملګری د غوا ړی چې زموږ له تيلفون څخه استفاده وکړی هغه ته دا اوليت حق ور کوو، نو ځای چې په کور کښې هم دغسې رويه او معامله د خپل کور له هر فرد سره که څه هم ډېر وړو کی وی اختيار کړی له ياده و نه باسو .

د مثال به توګه لکه څنګه چې موږ د خپل دوست يا ملګری خطونه بې اجازې نه لولو، اطاق يا کوټه ئې بې خبره نه ور ځو، خو بيا د خپلو کرانو افرادو به نسبت چې زموږ څخه زيات انتظار او توقع لری به لږ څه ډېر تفاوت سره د غو ټکاتو رعايت نه کوو .

لکه څنګه چې وړو کی حق نه لری چې د پلار په کاغذو او شيانو باندی لاس ووهی او د مور کالی سره پورته او کښته کړی، نو مور او پلار هم بايد د کوچنی استقلال او سرشار ژوند په نظر کښې ونيسي

او ډير مستبد فرد په حيث ئې به کار و کښې داخل او ځان ورنه چوی او لږ تر لږه دی پريږدی چې وړو کی ئې په دې نړۍ کښې چې د ځان د پاره ئې لری آزاد او مستقل اوسي .

سړی بايد د يل چا حقوق محترم وګڼی او د سنی د نورو خلکو د غير انتظار بداخلاقی او ناوړه سلوک په مقابل کښې هم د سترګو پټولو، حس ولري څو د کولای شی چې د نورو خلکو سره په ګډ ژوند کولو کښې زيات

مشکلات حل، او هم کوم اختلافونه چې د خلکو تر منځ پيدا کيږی تل آرام او سا تلی پاته سي .

به دې کښې شک نه شته چې موږ به ژوند کې له خلکو او حتی له نږدې صميمی دوستانو څخه آزرده او خوابدی کيږو، دا ځکه چې موږ له خلکو، دوستانو او ملګرو څخه د بې اندازې ښه سلوک او نورو اخلاقو انتظار لرو.

نو که ستاسی زړه وی چې تاسی او اولا دونه مو په ژوند کښې د يو ډير وړو کی اخلاقی نقص څخه خلاص وی يقين وکړی چې دغسې انتظار او توقع مو محاله او د ځان لپاره به ډيری سختی برابری کړی..

که تاسی غواړی، د هغو خلکو اخلاق چې تاسی مينه او اخلاص ورسره لری ستاسی په مقابل کښې هيڅ تغيير ونه کړی بی ځايه آرزوده ځکه چې دغه توقع د بشری طبع څخه مخالفه او ليری تقاضاده. د ميړه او مايني، له اولاد سره د مور او پلار، او يا د کورنۍ د افرادو

تر منځ زياتره اختلافونه او جنګونه چې د کدورت، نفرت او خوا بدی سبب کيږی، له دې کبله چې يو له بل څخه د ډير محبت او تر طاقت زيات توقع کيږی، که تاسی بشری ضعف د ترحم حس او ګذشت ونه لری يعنی د خپلو دوستانو ملګرو او له ځينو سهوو او خطاؤ څخه په

مردانه توګه سترګی پوټی نکړی، داسی مثال لری لکه هغوی چې د محبت او توقع پر نړۍ څښتن باندی رهی، په اندک تشنج او خفګان باندی ئې سرنګون کړی چې زياتره وخت تاسی هم ورسره سرنګون کيږی .

ډيرو احساساتو او محبت په توقع سرنګونيدل د عقل او سمې لارې څخه وتلی کار دی .

نو که څو ک په انصاف سره سترګی پټول او مراعات عادت کړی او په ځان کښې د ګذشت او رحم حس ته

پرورښت ور کړی او هم د ځان ضعيفو نقطو ته متوجه او قايله سی نو به وويل شی چې انسان له خطا خالی نه دی.

چې داښکاره شوه نو بايد له دوستانو څخه ډيره توقع ونه لرل شی .

دا رښتيا ده چې به کلی توګه د اختلافو مخه نه شی نيول کيدلای، ليکن د سی يتوب اعتبار په دې کښې دی چې موږ بايد هر کله د اختلافو برخلاف يو له بله په مهر محبت او اخلاص سره ژوند وکړو او په خپلو منځو کښې همکاری او يو لاس کيدل په هيڅ قيمت له لاسه ورنکړو.

که دغسی لوی توفيق زموږ د ژوند رفيق او ملګری شو نو به ژوند موږ ته وخاندی، او موږ به هم خوښ او خوشحال ژوند وکړو.

غ،«ایوبي»:

# د کندهار د اوبو او ډیزلي بریښنا ته یوه کتنه

## اوس په کندهار کښې هر ساعت ۴۸۰۰ کلیواټه بریښنا لاس ته راځي

د بریښنا انرژی لاس ته راوستل او د هغه څخه د کوروڼو او ښارونو د رڼانه کولو، ماشینونو چلولو او نورو بریکو په کار اچولو کښې ګټه اخستل بې له شکه د انسانانو د پاره د اقتصادي او اجتماعي پلوه د دوی په ژوند کښې لوی تحول ته منځ ته راوستلی دی.

بریښنا اوس د بشري ژوند صنعت، او تخنیک د انکشاف په لار کښې د یوه مهم عامل په حیث د انسانانو د هغو ضروري وسایلو او شرایطو څخه ګڼل کیږي چې بې له هغه څخه ابرومند او مترقي ژوند نه شي موندل کیدلای، او دا په حقیقت کښې د انساني پوهې لوړ کمال او ساینس برکت ؤ چې د پخوا ترمنځ ته راتللو وروسته امریکائي عالم «اډیسن» د بریښنا په کشفولو بریالی شو او ورو ورو له بریښنا څخه په تنویري او تدویري چارو کښې استفاده وشوه.

زموږ په هیواد کښې بریښنا د نیمې پیړۍ نه څه د پاسه تاریخچه لري او په هغو سیمو کښې چې د پخوا څخه د بریښنا انرژي پکښې تولید او په کار اچول شوي ده یو هم کندهار دی.

### د باباولي صاحب د اوبو بریښنا:

په کندهار کښې د بریښنا پخواني دستګاه د باباولي صاحب د اوبو بریښناده چې فرمایش ئې د هیواد ترلوی اړو دوړ د مخه ورکړی شوی ؤ د و دانۍ د چارو تر بشپړیدو وروسته دغه دستګاه د ۱۳۱٤ کال د اسد په ۱٤ نیټه په باباصاحب کښې ورول شوه، دستګاه د هغه وخت نایب الحکومه ښاغلي غلام فاروق عثمان بر ا نیستله ساختماني آمرتې الماني متخصص (کراوسی) او فني آمرتې الماني متخصص (مستر هیوبل) ته.

د باباولي صاحب د او بو د بریښنا د تولیدولو ظرفیت لوړ په محل ۳۳۰ کلیواټه ؤ خو ورو ورو د هغه کوپلونه زاړه شول او له دغه کبله اوس د هغه ظرفیت ۱۰۰ کلیواټه دی.

### الماني ام،ای،ان ډیزلي دستګاه:

دغې دستګاه په ۱۳۲۳ کال کښې په فعالیت پیل کړی دی، تولیدي ظرفیت ئې ۳۲۰ کلیواټه ؤ.

### امریکائي ډیزلونه:

دوې بابې امریکائي ډیزلونه هر ډیزل ۶۲۵ کلیواټه

(نور په ۱۳مخ کی)



د بریښنا دوه ډیزلي جنریټرونه چې د دواړو څخه ۳۰۰۰ کلیواټه بریښنا لاس ته راځي او بدې وختونو کښې د هغو د په کار اچولو له کبله زموږ د ښار د رڼانه کیدو مشکل حل شوی دی

دی په ۱۳۳۸ کال کښې په کار لویدلی دی .

## دفیل کوه داوبو بریښنا:

دا بریښنا په ۱۳۴۱ کال کښې په کار ولویدله دوې بایې ماشینونه لري، هره بایه ئې په ۴۰۰ کلیواټه ظرفیت په تولید پیل کړی او اوس ئې یوه بایه ۳۰۰ کلیواټه ظرفیت لري او یو ماشین ئې د ترمیم په حال کښې دی .

## الماني ام،ای ډیزلي دستګاه:

دغه دستګاه په ۱۳۴۲ کال کښې ودرول شوه تولیدی ظرفیت ئې ۲۵۰ کلیواټه ؤ .

## درې زره کلیواټه نوی ډیزلي جنریټرونه:

په دې وختونو کښې د کندهار د بریښنا دتقویې له کبله دوې بایې ډیزلي جنریټرونه چې ټول ظرفیت ئې ۳۰۰۰ کلیواټه دی د امریکې څخه راوړل شوی او په کار ولویدل.



د کندهار د بریښنا کوټ په سب سټیشن کښې د سرکیټونو یوه برخه

دغه رنګه په ۱۳۴۸ کال کښې د کندهار دمیوې د شرکت څخه ۲۵۰ کلیواټه ماشین رانیول شوی او په کار واچول شو ، د ای،آی،ډی څخه ۴۰۰ کلیواټه

ماشین اود روسی جنریټر څخه ۵۰ کلیواټه بریښنالاس ته راغی، دسړک جوړولو لەدوو بایو جنریټرونو څخه ۵۰۰ کلیواټه بریښنا تولیدیږی .



د کندهار په بریښنا کوټ کښې ډیزلي ټانکونه چې ۵۴ زره ګیلنه ډیزل د بریښنا د ډیزلي ماشینونو دپاره ذخیره کوی

اوس په کندهار کښې د نویو امریکائی ډیزلي جنریټرونو په ګډون دنوردو دستګاؤ څخه په یوه ساعت کښې ټول ۴۸۰۰ کلیواټه بریښنا تولیدیږی .

امید شته چې په راتلونکی وخت کښې دیوه (۵۰۰) کلیواټه ډیزلي ماشین اود فیل کوه د یوبل ماشین دترمیم له کبله په کندهار داوبو اوډیزلي بریښنا دتولید ټول ظرفیت ۵۶۰۰ کلیواټوته لوړشی.

د کندهار دبریښنا په مرکز کښې یو سب سټیشن شته چې د ۱۳۰۰۰ کلیواټو بریښنا ظرفیت لری او په یوه وخت کښې دغه له شپږو سرکیټونو څخه پیلو بیلو ځایونوته بریښنا ویشله کیږی.

په دې سب سټیشن کښې د ۵۴۰۰۰ ګیلنو تیلو د ذخیره کولو په ظرفیت درې لوی ټانکونه هم درول شوی دی .

په اوسنی وخت کښې په ټول ښار کښې بریښنا هره شپه بې له نوبته چالانه وی اود ورځی لەخوا هم د ژرندی خاوندان، دموټر ترمیمونکی او داسی

نور خپلی دستګاوی په بریښنا سره چلوی اود صنایعو په برمخ بیولو کښې کار ځنی اخلی.

(نور په ۱۷ مخ کښې)

# کندهار او سزئي پسرلی

دا چې سېږدی مزه نه لري بهار
ورته نه ښائي خوښه نرم د کندهار

که هر څه شاوخوا گودرم بېخو ندی ده
نه دی خوند سته دماښام نه دسهار

په صفت دی دهیڅا مېږده نه وه
چې په محضی وو تیر سوی ستا پر لار

همسري دی د جنت سره کوله
هغه وخت دی ؤ لقب (دار القرار)

اوس لذت د خوا ږه ژوند د ربکښې نشته
نه هغه دژوندده د ک لیل ؤ نهار

چې عذاب دی په ښکاره پکښې گنډلی
داسې بوښ دی نن پر تا باندی هوار

دا ژه نه وایم دلوی ؤ کم آوازدی
چې معدن سوي د تکلیف او د آزار

که دی سې څوک معرفي دا څخه غواړي
ستا په باب دي د (ویران) دغه اظهار

(ویران)

ظرافت:

## د دوو ابغو پېژندگلوي

بو وخت چې (چارلي چاپلین) د سینما نامتو لوبغاړي د رياضي د پوهاند (اینشټین) سره لیدلی وه چارلي ددې ملاقات بو ه ښه خاطره لري:

اینشټین و چارلي ته وویلی وه دا چې ته به ټوله جهان کښې مشهور دي وجه ئې دا ده چې په ژبه دې خلک پوهېږي (یعنې د چارلي دهنر په ژبه)

چارلي چاپلین ورته وویل: چې شهرت دا خبره نه غواړي څکه ته هم په دې نړۍ کښې دزیات شهرت څښتن ئې لیکن په ژبه دې څوک نه پوهېږي یعنې د اینشټین د ریاضي په ژبه).

ژباړه

# ولوبگوټه

مرتب: ویران

وین

## کشکی .....

کشکی اخال ستا د تندی وای یا د ژنې
چې پر مخ دی ځلېدای ښکلي مېرمنې
یا پېنکری دی وای په سرو پښتو لاسو کې ...
یا دی گل وای پر کمیس یا پر بودنی

### گلر خان د رومی سبا مېلې ته

گلر خان د رومی سبا مېلې ته
بابا ولې ته، څوک ک سر پوزی ته
حیران برلاری زه شمس الدین یم
چې پو رته د رومم که مخ و کښې ته

## سپینه خوله بده

ښکاریږي په ښکنځلو

سېږی بد ښکاري دلاس په لگولو
سپینه خوله بده ښکاریږي په ښکنځلو
چړوند ک غوندی ښې مه پېسه آسمان ته

دا هیڅ نه دی د آسمان د ځینگولو
شرمېږنکي چې نیواي نه شي له لکی نه
ښا دادا نو ته ورځې بې دمولو
چې آسو نه نه لوی ورسره ښائي

نه چو لگېږه چیرته ده د ملولو
که بودا پر گل کېږی ورته ښائي
نه کار که چې و کېږي پر سرو گلو

دا وینا دی طالب جانه داسې خوند کا
لکه خوند کاندی شبنم پر ژیړو گلو

ادبي نثر:

# د تا ګور اثر

پسرلی نو دې شو او زما د سر سپین ویښتان د ژوندانه په خزان وهلی بڼ کښې قدم وهي.

زما د باڼه خوګانو خیرنې ګونجې د پرونۍ د ځوځغه حکایت اوږد پیړیو نکلونه کوي.

په سر کښې مې تاج د پسرلي، د شګوفې په څېر دا غوټه شوي اوږد پنبو د فیسو پاغندو په شان ئې لکه هاله زما باڼه خوګان په ما بین کښې نیولي دي.

ویره چې چلیږي تار، تار ته ئې حرکت ورکوي او کله هغه پورته کي او ګاهې ئې بیا کښته کي ته چې دا دا سپینې پاغندې د مرګ حدیث بولوي اوږد فنا او مخ کښې زما سره خبرې کوي او غواړي چې د هغو د تار و ځغه زما د سبا کفن تیار کړي او فریاد وهي.

مه دا ځه چې د خزان وهلې سرې لپاره لکه ته، نور پسرلی مفهوم نه لري.

د پیغلې ثریا (بارک) ژباړه

---

«رازقي»:

# پرخه شه

پرخه شه او په خپلو پستو ځاځکو د ننکیو غوټیو او پښکلو ګلونو ننکې مخونه پريمينځه.

کله چې د اوږدې شپې تورې ترږمې د آسمان له پراخو ځنډو ځغه ټولیږي او کله چې د اوچت افق په کنارو کښې د نوي ورځې سباوون مخ ښکاره کوي د ځمکې او سپېدو نکو سره.

او کله چې د سپینو ستو ردو ستر ګکونه ورکیږي او د وغوي ګڼې قافلې د آسمان په چوړ کښې ترې تم کیږي.

پرخه شه اوږد نرګسو شو ګیر وهلې ستر ګې له خوبه پريمينځه.

د بلبلو په وزرونو باندې سرې او په وښنده دا ویښې ئې کړه چې د ګلونو پر تر یو ځانګو باندې د بیدارې سندې شروع کړي.

پرخه شه، او د ځمکې په لوی، وړو مخلوقاتو یو شان وو دیره او ځان د برابرۍ په ژړه پورې مثال کړه.

کله چې شپانه خپلې رمې د تورو غرونو په لور بیائي او د رمې د سر کښ غږ، پخپل خواږه آواز د خوب جادو

ما توي.

پرخه شه، او په تازه وښو د غوړیږه، د دیډیو او غاڼو لو په پاڼو کښې د ملغلرو ژړه وړو نکې ځیرې ښکاره کړه.

پرخه شه، او د سهار د نسیم سره سرې او خوږې وږمې د ښایست د جهان سپېڅلې سوغات یوسه.

هغه چا ته چې نوې ورځې ته د نوو فکرونو او نوو ارزوګانو سره د اویښ شوي دي.

# نثر و ادب

د هاروني ژباړه:

# باد ؤ باران

ته زما په تلاش دا ځې دې.

پرلار د تونډ باد ؤ باران سره مخامخ سوې.

دې باد ؤ باران ستا په عزم کښې هیڅ خلل نه ؤ پېښ کړی او هغسې زما د غریبانه کور پرخوا راروانه وې.

ما ستا په هیله او انتظار ورد روازې ته دواړه ستر ګې نیولې وې.

دې بېره دا سره وه چې باد ؤ باران به بېرته پښېمانه کړې ئې ځکه چې هم شپه وه، هم باد ؤ باران ؤ.

څو زما انتظار پای ته ورسېدی او په څو کښې ستا د پښو دړغ زما تر غوږه شو.

ته په باران لنده خیشته خپل ځا کلې ځای ته دا ورسېدې نو لازمه وه چې تر هر څه د مخه ستا کالي وچ شي؛

ما پخپله خونه کښې ستا د کالو د وچېدو او ستا د تود والي د پاره اور نه دړلود.

یوه شمع مې لګولې وه چې په هغه نه ستا کالي وچېدله او نه ته په تو دیدلې.

ستا د کالو د وچېدو د پاره مې د باد ځغه مرسته وغوښته او د خونې کړ کۍ مې خلاصې کړې.

تا خپل کالي چې ښایسته دي هم جوړ کړي وه ودې ته آماده کړه چې په باد ئې وچ کړ و.

خو باد تر هر څه د مخه هغه لګېدلې شمع دامړه کړه او تاریکه ئې جوړه کړه.

زه ؤ ته او ستا د کالو د وچېدو او ستا د تودېدو فکر سره باته سو لو.

غ ، ایوبـزی :

# د کندهار یو ځوان هنرمند په تو کر هنداره، آهن چادر، پلاستیک او لرګی

## باندی په ښپړ شکله خطونو په مشقی او جلی خط ښکلی سر لوحی لیکی

بریالی عزیزی د کندهار یو ځوان او نامتو سر لوحه لیکونکی په خپل فن کښی ډېر مهارت لری دی او وه ویشت کلن دی او د شپږو کلونو راهیسی ئې په دغه هنر شروع کړی او د مخه تر هغه ئې د ګندهار د ګل دوزی په ماشین باندی د خامک دوزی چاری برمخ بیولی ، خو خپل ذوق دی ته وادار کړ چی د سر لوحو په لیکلو او جوړولو کښی پوره مهارت وګټی .

نوموړی چی د استه پښه ئې په ورکتوب کی ګوډه شوی وه ئې چی ما د کندهار په مشرقی ښوونځی کښی تر شپږم ټولګی پوری درس ووایه خو د بد مرغه په دغه وخت کښی د بایسکل څخه ولویدم او ښپه لاس می مات شو او د ښوونځی څخه ووتم ، یو څه موده په ګل دوزی او وروسته په مشقی او جلی خط د سر لوحو په لیکلو لګیا یم .

ښاغلی عزیزی چی لیکه په ښپه لاس کاږی په تو کر، هنداره، آهن چادر، لرګی او پلاستیک باندی په پښتو ، عربی ، دری، کوفی، طغرائی او انګلیسی شکلونو مشقی او جلی خط لیکی او ډېری ښکلی سر لوحی جوړوی .

دی وائی چی طغرائی مشق یو څه راته مشکل او انګلیسی خط راته اسانه دی نو له دغه کبله د طغرائی مشقی لیکه د سر لوحی اجوړه ترنورو ډېره ده .

دی د خپل دغه هنر اصلا د خپل ذوق بولی او د ښوونځی په دوره کښی ئې د لیکه او رسم د مضامینو سره زیاته علاقه درلوده ، خپل دغه ذوق او د خلکو تشویق دی ته وادار کړ چی په شخصی مغازه کښی د سر لوحو په لیکلو پیل وکړی .

نوموړی وائی سر بیره پردې چی زه د خپل دغه هنر سره زیاته مینه لرم د اقتصادی پلوه هم ماته په زړه پوری دی او ماته له دغه درکه څخه د میاشتی دری زره افغانی لاس ته راځی او په ګذاره می په کیږی .

بریالی عزیزی پرته له شخصی مغازی څخه د ځینو د سر وی او احصائیی په ریاست کښی د نقشو او پلانونو د توحید د لوډ ګرافو د خطاطی په کار اخته دی د ښاروالی او ځینو نورو مؤسسو د پاره سر لوحی جوړوی او د خطاطی فرمایش ئې منی .

دی وائی زه د کورنی ژوند په هکله اقتصادی مشکل نه لرم او د خپلو ورځنیو عایداتو څخه یو څه پیسی د راتیږی او غواړم چی په آینده کښی د خپلو عایداتو له لاری د نورو هنرونو او هنرمندانو د لیدنی لپاره تر هیواد د باندی سیاحت وکړم او د خپل دغه هنر د انکشاف د پاره نوی شیان زده کړم .

(پاته په ۱۷ مخ کی)




ښاغلی بریالی عزیزی د سر لوحی لیکلو په وخت کښی

« د ۱۳مخ پاته »

## د او بو او برېښنا...

د کندهار د ښاري شبکې کار په سلو کښې ۹۸ بشپړ شوی او تراوسه پورې پوزه ميټرونه د کوډونو څخه تېر ... ايستل شوی او پر عمومي پايو پاندې

نصب شوي او دغه کار دنا ورېدگۍ اخستلو مخ نيوی کوي، دغه رنگه د ښار په بېلو بېلو واټونو کښې د اوسېدنې نوي ستني دړول شوي او د لويو طاقتونو نوي مزي غزول شوي دي.

په کندهار کښې د شپې له خوا د کوڅونو او بازارونو د روښانه کولو نه پرته زموږ خلک ماشينې ژړندې، او ځينې نورې صناعتي چارې هم په برېښنا سره پرمخ بيائي، او هر کله چې وروسته تر

ځلورو کلونو د کجکي د اوبو د برېښنا لويه او قوي شبکه په کار واچوله شي نو به د کندهار او هلمند په ولايتونو کښې سر بېره د صناعتي فعاليتونو په زياتولو د اقربېدو نه هم په برېښنا سره چالانه شي او په دې ډول

به د دغو سيمو دمځکې لاندې اوبو څخه د کرنې په پراختيا او د زراعتي حاصلاتو په لوړولو کښې کار واخستل شي او په دې ډول به برېښنا زموږ د خلکو د اقتصادياتو په لوړولو کښې ستره اغيزه وکړي.

---

ژباړه:

## د برېښنا د قوي فشار

### په واسطه په موسيقي کښې انقلاب

الماني موسيقي دان «ر د شونر» د الکترونيکي ورېځو د موسيقي د منځ ته راتلو په لار کښې نوې طريقې په کار اچولي دي، نوموړی د المان د پوبل

نامتو موسيقي دان «اشتوکهاوزن» په څېر د موسيقي د معمولي آلو څخه کار نه اخلي بلکه د الکترونيک څخه د آهنگ په وېلو کښې استفاده کوي.

«شونر» په دغه هکله د «موگ سينتزايزر» امريکائي الکترونيکي دستگاه ته تکامل ورکړی دی.

دغه دستگاه کولای شي ۱۲ مليونه غږونه منځ ته

( د ۱٦مخ پاته برخه )

## يو ځوان هنرمند...

زموږ دغه ځوان سر لوحه ليکونکې د کوڅو او څونو د ښکلا د پاره د رسامي په ذريعه پورې منظرې او پر هندارو باندې د قرآن عظيم الشان د مقدسو آياتونو ښکلې نمونې هم ليکي.

ښاغلی عزيزي په خپل کار کې کوم مشکل نه لري او په راتلونکې وخت کښې غواړي چې دغه فن ته نور هم انکشاف ورکړي او ځينې داسې مواد تهيه او په کار واچوي چې د سر لوحو په ليکلو کښې د زياتو خلکو توجه ور واړوي.

ده وويل: چې په شپږو کلو کښې ئې تقريباً شپږ زره سر لوحې ليکلې او خلکو ته وړاندې کړې دي.

دی وائي زه د کندهار د اړول هنرمندان ستايم خو وايم: که چېرې دغه ملگري د نوموړي فن له مخه خپل فن پرمخ بوزي ښه به وي، او د دغه کار د پاره د کورس پرانستل به زيات استعداد ونه وروزي.

بريالی عزيزي په خپل دغه هنر کښې ځينې شاگردان روزلي او اوس هم دده تر روزنې لاندې پو تکيه شاگرد لري.

ښاغلی عزيزي د يوه ځوان په حيث د ځوانانو د اوسنيو بېځايه مود،فيشن او نزاکتونو څخه آزرده دی او وائي: که افغاني ځوانان او پېغلې د علم او عصري روزنې په وسله مجهز او اجتماعي خدمت د لارې ددې هيواد د پرمختگ د پاره ملاوتړي هيواد ژر تر ژره پرمخ ځي.

---

راولي.

الماني موسيقي دان په دغه هکله يو نيم کال خوارۍ وکښې او دادی اوس ئې لومړی پاڼه د هارموني انهدام په نامه تهيه او وړاندې کړې ده او دغه نوی پاڼې د موسيقي قول سرحدونه د مخه وړې شي.

«شونر» خبريالانو ته وويل: په دغه نوې طريقه کښې هغه موسيقي دان برياليدی چې د موسيقي په فن پوره د پوهېدو او هم بايد د برېښنا د قوي فشار د تخنيک په هکله پوره معلومات ولري.



پیغله قمره (اشکزۍ):

# د لرغوني افغانستان

# په ټولنه کې د ښځو د حقوقو ارزښت

د ښځو د مقام ارزښت په افغاني ټولنه کې د تاریخ د سیر او حرکت سره سم تحول کړی او ځانته تاریخ لري.

د ویدي د عصر د نغمو په استناد چې د افغاني کلچر څورا پخوانۍ ریکارډ دی او د ۳۵۹۰ ق، م دا په دې څرګندوي چې افغاني تهذیب او تمدن د وښانه کوی نو په هغه وخت کې د دې خاورې میرمنو یوازې په نامه د ښځو او نارینو څخه توپیر درلود خو په اجتماعي چارو او د خلکو په خدمت کې بې ګډون بو شانو.

په هغه زمانه کې هم واده د کورنۍ د تشکیل وسیله او کورنۍ بیا د ټولنې اساسي واحد ؤ، ځکه نو واده د اصلي او مذهبي وظایفو یو جزؤ چې دا یې یو طبعي او مقدس امر باله، واده به عموماً د عشق او د مینې په اساس ؤ او ځوانانو به د سپېڅلې او رښتنې مینې په وجه خپل د ژوند ملګري ټاکي مینه او محبت یې د ژوم او ناوي د سعادت د کورنۍ د ښې او ټینګولو وسیله ګڼله ځکه چې په دې اساس دوی کولای شوای خپل د ژوند چارې په ګډه او ښه توګه سرته ورسوي.

د هغه وخت میرمنې بې قیده او بنده ژوند درلود او د خپلو نارینو په اوږه په اوږه سم په کښتو او د غرو په لمنو کې په تیره بیا په ملي میلو کښې چې (سامانه) نومیده برخه اخسته په د غو میلو کښې په هر چا د خپل ذوق او کسب سره سم تمایشونه ورکول ښځې او نارینه په سره د اغونډ شول د پهلوانۍ لوبې، د آس ځغستنا، شعرونه، غزلې نڅا، اتڼونه او نورې خوشحالي په وې له د غه ځایه په زیاتره پیغلو او ځلمو یو د بل سره خبرو اترو ته ښه وخت پیدا کاوه او بې له قیده او شرطه په آزاده توګه ول به یې خپل د مینې او ژوند ملګري وټاکي د دواړو د موافقه او رضایت د واده لوی او اساسي شرط ؤ خو د واده اختیار او واګې د ښځو په لاس وې د هغو پیغلو چې بې له مینې څخه به ئې د چا سره یې د یاد شته مني له کبله واده کاوه په ټولنه کښې د خپلو همزولو له خوا په لوی پېغور تهدیدلې او ټولو به کر که ځنې کوله هیچا به ښه سترګه نه ورته کتل د غا د ا زهغه پیغلو او ځلمیانو چې د تجرد په حال کښې ژوند کاوه هم د چا ښه نه ایسېدل.

یعنې د ویدي په عصر کې واده او د کور جوړول یو حتمي کار ؤ د وی به ویل ښځه او نارینه په ژوند کې د غښې او لیندۍ په شان وی چې بې له لیندۍ څخه کار نه اخستل کیږي.

د ښځو مقام او احترام د هغه وخت د سرود او نغمو څخه بو هیدای شو، د هغه وخت نارینو یو ازې یوه ماندینه کول او هغه به ډېره برګرانه وه، د خپلې ماندینې سره به ئې تل مینه درلوده او یو بل ته یو ډه وفادار ه وه خپله مینه او محبت به ئې د ژوند تر پایه ساتي، ښځو به حتی تر مرګه وروسته د میړه سره وفاداري کوله او د هغه مینه یې په زړه کې ساتله او د هغه د دوستۍ په ویاړ به تل د هغه په کور کې وه هیڅکله به یې د خپل میړه کور نه پرېښود دوی به د میړه او ماندینې محبت او علاقه داسې بیانوله:

(ژوم ناوې داسې تعقیبوي لکه لمر چې د روښانه شفق پسې راوځي) بل داچې (ښځه د میړه په کور کې د قطب د ستورې په څېر تل ثابته ده) او یا داسې به ئې ویل:

د نجلۍ مقام د هلک سره مساوي دی هیڅ توپیر وجود نه لري او یو بل ته سپک او کوچنی نه ښکاري د دوی اولاد نجلۍ او هلک په یوه د ننګ تربیه کیدل او د مینې د وا و پلرو په نظر به یو شان ؤ بر د وی خپله پیغله ګرانه وه او هغه به ئې د کور ستوري باله، دا پوره دلیل دی چې د ښځو او نارینو تعلیم او تربیه یو شان ؤ د هغه عصر د یو لی شعرونو څخه لکه چې ښه ښکاري (ویسو میترا) د هغه وخت رشید عالم د ښځو په باب داسې وایی:

(نور په ۲۲ مخ کې)

ژباړه:

# الکترونیکی تدریس

نوی دې برو پخوانیو وختو د اهیسې د ښوونځو له کمبود سره مخامخ شوي، او د دغه مشکل د له منځه وړلو دپاره بېل بېل هیوادونه د تکنالوژۍ د پوهانو په مرسته کوښښ کوي چه په دې کار کې بریالي اوسي.

دادي په دې وختو کې د الکترونیکي وسایلو یوې کمپنۍ داسې یوه نوې دستګاه جوړه کړې ده چه د هغه په واسطه یو ښوونکی کولای سي په یوه ساعت کې څو ټولګیو ته چه په هره یوه ټولګۍ کې ۲۵ تنه شاګردان وي درس ورکړي.

دا په داسې ترتیب چه ښوونکی د یوغږ ونکې دستګاه تر شا ولاړ، او په تدریس شروع کوي.

شاګردان له خپل ښوونکي څخه د استفادې کولو دپاره هر یو د یوی مخصوص ګوشکی په لرلو، او د مخامخ تلویزیون له صفحې څخه استفاده کوي

څه وخت د مخه دغه ترتیب د امریکا په ښوونځیو کې تر استفادې لاندې نیول شوی او ډېره ښه نتیجه ئې ورکړې، او هم د مشکلاتو پیدا کېدو په وخت کې شاګردان کولای سي له هغو میکروفونو څخه چه غوږونو ته ئې نږدې دي له ښوونکو څخه پوښتنه وکړي او خپل جواب واخلي.

ژباړه:

# یوه تابلو په

## دوه ملیونه پونډه خرڅېږي

ارل (هارود) د خپلو ملګرو په مشوره تصمیم نیولی دی چه د تیتیان د نقاشی یو ښکلی اثر چې په هغه کې د (اکتایون) د مرګ صحنه تمثیل شوې ده (له نیشنل ګالري) څخه چې لس کاله هلته په امانت ږدل ایښودل شوی ؤ راوباسي.

دغه اثر به د جون په میاشت کې د دوو ملیونو پونډو په بیه په خارج کې خرڅ کړه سي.

ژباړه:

# کاغذی بطری

ډېر ژر به د ډېرو خرېلو بو داسې نوی ماشین بازارته راسي چه د کاغذي بطریو په واسطه کار کوي

د دې ډول بطریو تهیه کوونکې د امریکا کمپنۍ او په اطمینان سره ئې ویلي دي:

د دغه ډول کاغذي بطریو یوه دانه پنځه دقیقې ډېر ښه کار ورکوي، یعنې د یوې ډېرې اصلاح یو ده کولای سي.

د کاغذو بطرۍ له نازکو کاغذو څخه جوړې شوې، او تر نورو معمولي بطریو ئې امتیاز

دادی چه ټوټې او درنې نه دي او علاوه پر دې که چېري نسبتاً

پاته په ۳۰ مخ کې

ژباړه:

# نیمګله فلم

د (کې، آصف) تر مړینې وروسته د (محبت او د خدا) فلم نیم بشپړ پاته شو.

د یو تازه خبر له مخې (دلیپ کمار) تصمیم نیولی دی چې د هغه فلم پاته برخه هم مطلقاً په خپل ډائرکشن سره بشپړه کړي.

د یو بل خبر له مخې د کې آصف د وهمه ښځه (نګار سلطانه) د آصف استو د یو د خپل ځان او زامنو مال بولی نو د دلیپ کمار د دې اقدام پرضد ئې مربوطو مقاماتو ته رسمي شکایت کړی دی چې تر اوسه ئې نتیجه نه ده څرګنده شوې.

ژباړه:

# د نفر پر ځای عکسونه

په دې وختو کې د مشهورې لوبغاړې (نرګسې) ورارۀ سرور حسین دانور حسین زوی له هغې نجلۍ سره چې د دوی د کورني خوښه وه رسماً په بمبئي کې واده وکړ:

انور حسین چې د ۲۲ کلونو داهیسې په سینمائي چارو کې مصروفیت اري د خپل زوی د واده له کبله خوښ دي. لیکن له دې سببه چې خورئې (نرګسه)

د هغې ناروغۍ په سبب چې ورپېښه وه دغه واده ته حاضر ید لای نه شوای خپله خواښینې څرګنده کړې ده ئې ویل: څرنګه چې خور مې (نرګسه) بې

اندازې دا باندې ګرانه ده نو ځکه می د زوی د واده په شپه د دې عکسونه هری خواته ځوړند کړه څو چې د واده مجلس بې (نرګسې) ونه بلل شي.

ژباړه :

# د نړۍ ډېر کوچني رنګه

## تلويزيون

په دې وختو کې د نړۍ د الکترونيکي کوچنيو وسايلو جوړېدو په لړ کې يو ډېر وړوکی تلويزيون چې په عين حال کښې ټرانزسټور هم دی د جاپان د مشهورې (سوني) کمپنۍ په واسطه جوړ شو.

دغه کوچنی او ښکلی تلويزيون چې د (٦) انچه تصويري چراغ لرونکی دی، وزن يې (۹) کيلو او قيمت ئې لږ و ډېر د (۳۲۰۰۰) افغانيو په حدودو کښې دی پدغه تلويزيون کې له يو نوي اختصاصي برق څخه چې د نورو رنګه تلويزيونو له تصويري بريښنا سره زيات توپير لري علاوه پر هغه د لوړې سطحې په کنج کې يو آنتن هم لري چې له هغه څخه په آزاده هوا او حتی په موټر کښې د ننه هم استفاده کېدلای سي.

او حتی که يې د اوسېدو په اطاق کښې تصوير صاف نه وي کېدلای سي چې دغه آنتن له هوايي آنتونو سره يو ځای شوی او کار څخه واخستل شي.

ژباړه:

# پلاستيکي کورونه

دوه زرم کال به يوله کومه شکه يو عجب او د حيرت وړ کال وي ځکه د ننني نړۍ د ولږدول وسايل به د ومره تغير و مومي چې هر سړی به له ډېر حيرت څخه په فکر کښې ورک کړي.

په دغه کال کښې به له هغو شيانو څخه چې شکل به ئې نسبت ننني شکل ته ډېر تفاوت پيدا کړي د کور جوړولو دی.

ځکه يو هان همدا اوس په زياتو کوښښو سره د کور جوړولو د پاره د ودانولو د وسايلو په اختراع بوخت دي چې له همدې نوي وسايلو څخه يو پلاستيک دی دغه ماده د خپل تغير کونکې خاصيت په علت په چټکې سره کولای سي چې د زياترو ننني وسايلو ځای ونيسي.

له همدې کبله يو هانو تصميم نيولی دی چې له هغو څخه د اتلونکو کورو په جوړولو کښې استفاده وکړي.

پلاستيکي کورونه چې د ۱۹۹۰ تر ۲۰۰۰ کاله پورې به د استفا دې د پاره منځ ته راسي وزن يې خورا لږ او کېدلای سي چې هر کور به دوو هفتو کښې جوړ کړه سي.

دغه پلاستيکي کورونه به د راتلونکي ژوند په ټولو لازمو وسايلو سره مجهز وي.

---

(د ۱۹ مخ پاته)

## کاغذي بطرۍ

د يو زيات وخت د پاره استفاده څخه و نه سي ورو سته پيله دې چه ذخيره انرژي ئې له منځه ولاړه سي کار کوي او هم يو مهم ټکی دا دی که د کاغذي بطريو دلي انرژي د جبران د پاره د هغه څو دانې سره يو ځای سي.

کېدلای سي يو موټر چه بطرۍ ئې خلاصې شوې وي د هغه د روښانه کېدو د پاره کار ورڅخه واخيستل سي.

د يوې کاغذي بطرۍ وزن د (۰،۱) او نسو په حدودو کې دی او د يو ځل استفادې د پاره ئې په کار ده چه بطرۍ تر استعمال د مخه بايد په او بو کې داخله شوي او بيا استفاده څخه وسي.

ژباړه:

# د سيمون هنري آثار

## خرڅلاوته وړانديز

ښاغلی نورټون سيمون د امريکې د لاس انجلس يو معتبر، او نامتو شته من، چې د خپل ځان د يوې خاصې مؤسسې مؤسس او د صنايعو له خاوندانو څخه دی د هنري آثارو له ټولو سره ډېره علاقه لري.

ده په دې وختو کې تصميم نيولی دی چې د خپل ځان يو شمېر هنري پارچې چې د هغو تخميني بيه پنځوس مليونه ډالروته رسيږي د ليلام په ډول خرڅې کړي.

د ښاغلي سيمون د خرڅولو وړ پارچې او تابلوګانې چې د ۱۹ قرن د نقاشي او رسامي د استادانو نمونې بلل کېږي شمېر ئې (۷۰) ته رسيږي.

سيمون د خپل ځان د قيمت لرونکو هنري دارايي د يوې برخې خرڅولو دليل داسې څرګند کړ چې :

زما هنري آثار خورا زيات او غواړم چې د هغو يو شمېر په خپله خوښه خرڅ، او په عوض کې ئې نور نوي هنري آثار لاس ته راوړم.

خو ځيني خلک د سيمون د آثارو د خرڅولو دلايل داسې بيانوي:

۱ : څرنګه چې سيمون له سياسي مسايلو سره زيات علاقه لري غواړي چې د زياتو پيسو په لاس ته راوړلو سره د امريکا په راتلونکو د برسر اقتدار حکومت د اعمالو پر ضد مبارزه شروع، او د ده د خوښې وړ مربوطو مؤسسو سره مالي کومکونه وکړي.

سيمون په تيره کال کې د دوه مليونو ډالرو په مصرفولو سره موفق نه شو چې د دغه هيواد په کانګرس کې د جمهوريت غواه د سناتور په حيث د ښاغلي (جاج مورفي) د ځای کلوما نع سي.

۲-ښاغلی سيمون له ښځې څخه تر جلا کېدو ورو سته د اوسېدو يو کوچنی ځای نيولی او نشوای کولای چې خپل ټول آثار او تابلوګانې په مرتبه توګه سره په خپل نوي ځای کښې وساتي.

(د ۹ مخ پاتې)

# د بودجې د تنظیم روشونه

پخوا موږ وویل چې بودجې لومړی د دولت له خوا د بودجې لایحې په څېر تنظیم او د پارلمان له خوا تصویبېږي، ذلته د یر مهم ټکي دا دي چې دا بودجه د اجرائیه قوې له خوا په څه ډول باید په مصرف ورسول شي ؟

البته د بودجې برآورد د ادارې مامورینو د نظریاتو او د هغو د اطلاعاتو او معلوماتو په سیوري کښې صورت مومي اما د حکومت وظیفه دلته دا ده که چیري د ادارې مامورینو له خوا د بودجې په برآورد کښې کوم

تعصب، جاه طلبي او یا نورې حرفوي یا شخصي انګیزې په کار وړل شوې وي باید د عوامل د حکومت یا کابینې له خوا په ښه توګه تشخیص شي دا خبره د بوهانو له خوا ثابته سوې ده چې وائي:

بودجه د ذرهاو ماموریتو د تصمیم نتیجه ده دا لایحه چې د دوی د تصمیم په اثر ترتیبېږي هو مره څه لایحه وي هر کله چې کابینه هم د دروستې تصمیم ځای دی د تاثیر لاندې راولي اما اچو بودجه د عامو چېګنو لپاره جوړېږي باید د هغه ټول تصمیمونه پکښې په دقت مطالعه شي.

وموویل په دې عصر کښې د بودجې په برمختګ په علمي مسایلو سره دي یعنې د بودجې د تنظیم په روشونو کنترول او د عمومي لګښتونو نظارت کول چې دا ټول علمي تحقیقات او مطالعات فواید چې د هغو په اثر د دولتي مؤسساتو عملیات او پلټنه ئې چې په دې شکله کېږي ډېره اسانه کړې ده وموویل د بودجې علمي مسایل یعنې د بودجې د تنظیم روشونه، کنترول او په عمومي لګښتونو نظارت کول علمي منشا او اساس لري اما تر اوسه پورې هغه قاطع او مطمئن مدرک چې د هغه په اساس دولت وکولای ټول عواید په ښه توګه په هغه ټاکلي پروژو باندې وویشي په لاس کښې نشته.

خو یو اځنې لا ډېر تر اوسه پورې د بوهانو په نظر دا ده:

چې د هرې پروژې عملیات د مثال په توګه که یوه د او بو لګولو پروژه یاده شي باید د هغه ټکي وسنجول شي چې په یوه متر مکعب خاوره کې څو تنه او په څو ورځو کې هغه مخ ته تلای شي او هر چا ته د هغه د لیاقت او د کار د استعداد له رویه څومره اجوره ورکړه شي.

بیانو ټول له دغه پروژه څومره متر مکعب کار لري او څومره کارګرو ته په څومره اجوره ضرورت دی.

دا کار اسانه نه دی بلکه ورځنی ټول اقتصادي شرایط باید مطالعه او بیا ټولی پروژې ته یوه اندازه بودجه پیش بیني شي په دې ډول اوس لې څه د پروژې د سرته رسولو لپاره او د هغه د لګښت ټولو نقاطو د پیش بینۍ لار اسانه کړې ده.

په زیاتره مخ په انکشاف مملکتو کښې دا نظریه منل شوې ده چې دولت باید په ټولو خپلو عمومي مصارفاتو کښې سپما وکړي او په دې ډول هیواد ته د اقتصادي بحرانو څخه نجات ورکړي.

دا خبره د منظورولو ده خو نن بودجه جوړول د مالي شرایطو او اقتصادي سیستمولاندې د اسې تنظیمېږي چې لومړی باید هره پروژه په عملي توګه د عملیاتو له نظره د اسې دقیقه او په غور وسنجول شي چې په پیش بینۍ کښې هیڅ ډول تفاوت پیدا نشي.

اوس په هر دولت کښې د مالي قدرتو د زیاتوالي موضوع او د دولت د بیلو بیلو مؤسساتو د فعالیتونو تنظیم او پراختیا لپاره د اقتصاد د لارې پیش بینۍ د توجه وړ ګرځېدلې ده دوهم دا چې د ادارې عالمانو په نظریه دا خبره منل شوې ده چې باید اجرائیه قوې ته د بودجې په تنظیم او خرڅولو کښې زیات اختیارات ورکړه شي ځکه نن د دوی په نظر بودجه هغه یوازنی وسیله ده چې د دولت د پروژو د تثبیت او تنظیم او د دولت د دستګاو د مالي احتیاجاتو د پوره کولو لپاره پکار اچول کېږي.

دا خبره د نړۍ د دوهمې جګړې وروسته په ښه توګه ثابته او روښانه شوه چې د پیسو د لګښتونو کنترول او یا په لګښتونو کښې سپما د ومره زیات تاثیر نه لري لکه چې لومړی په هره پروژه کښې د انساني منابعو

قوه او د هغې څخه په علمي توګه استفاده کول د وسایلو او ملزوماتو تهیه کول او وسائل ئې د هرې پروژې په عملیاتي حسابو کښې د پخوا نه په ښه محاسبه او پیش بینی ئې وشي.

(۲۱ مخ)

وموویل د انسانی منابع یا انسانی قواؤ څخه استفاده کول زما منظور دادی چی باید اجرائیه قوه د بوهیږی چی پدغه پروژه کښی څنگه کارگراو پرسونل ته ضرورت دی، ټولی وظیفی تجزیه او تحلیل شی چی

داوظیفه څه خصوصیات اوشرایط لری او هغه کارگر چی هغه وظیفه ئې ایجابوی د مختلفو منابعو څخه پیدا کړی د علمی موسسو یا دنورو فابریکو دوزل شوی ځوانان استخدام کاندی او پیاهروخت خپل پرسونل

د نوی انکشافاتو، اختراعاتو او یا علمی مسایلو باندی د اخبارو، مجلو اویا د کوم سیمینار لهلاری باخبره او بوه کاندی ترڅو دهغو د بشری قوې څخه په علمی توگه استفاده وشی.

څکه نن دا خبره نه یواځی د اداری دعلم پوهانو ته بلکه ټولو وگړوته ثابته شویده، هرهغه حکومت چی د پرسونل پهاستخدام اویا دپرسونل پهمقرری اوتبدیلی کښی دپوره عدالت اوپه قضاوت څخه کار

وانخلی او هره وظیفه دهغو اهل ته ونهسپاری او باځینی کسان چی پوره استعداد اولیاقت ولری هغه ته په کار د اختیاراتوسره ونهسپاری، هغهحکومت نهیواځی پخپلو وظیفو کښی بریالی کیدای نشی بلکه ورو، ورو دمملکت افراد دناامیدی او مایوسی خواته ځی.

دمثال پهتوگه بهدا خبره عرض کړم: که پهیوه موسسه کښی تقرر او تبدل یا داستخدام لیاقت او استعداد، نیک سوابق، د کارسوابق، تجربهاو علمیت پهنظر کښی ونهنیول شی او هرڅوک خپل اشنا، قوم

همسایه دځینو غیررسمی ارتباطاتو پهپیوندگلوی په ډیره لویه وظیفهچی هغهئې پههیڅصورت لیاقت ونهلری استخدام کړی، پدې تقرر دموسسی د مستحقو کارگرو او پرسونل د کارکولو احساسات ضعیفه اوله منځه ځی

او پدې ډول د ټولونورو کارگرو او اداری کسانو دعدالتحس جریحهداره او تل به پرته له شکایته بل کار ونهکړی.

اوس قضاوت وکړی چی د هغهپروژې کامیابی به دلگښتونو پهسیما کښی متصورهوی او یابه دپروژې په عملیاتو کښی دقیقه پیشبینی اوپه علمی توگهد هغی حساب او سنجول؛

## د ژوندانه لار

علم یوداسی لوی نعمت دی چی په ژوندانه کښی د افتخارتاج اوترمرگه وروسته پوروڼ یادگاردی.

حضرت علی «ك»

کهسره داغونې شو دا آغاز دی، کهسره داغونې پاتهشو دا پرمختگ، اوکه بهگډه موکار سره وکړ دا بریالیتوب دی.

## دلرغونی افغانستان....

(د ۱۸مخ پاته)

( ښځه ستاسو کور دی ) .

ددغی لنډی جملی څخه د ښځی مقام، ارزښ اودهغه واقعی احترام معلومیږی کهڅههم په هغه زمانه کښی د کورتنظیم، د ماشومانو روزنه او تربیوی شمړونه

دویدی پهعصر کښی دښځو وظیفهوه بیاهم دماندینی حقوق او امتیازات دمیړه سره مساوی ؤ او ښځی یوازی ځان د کور پهچارومکلفه نهباله بلکهدنارینو

سره بهئې په جگړو او نورو مهموچارو کښی هم برخه اخستله پــه جرگــو او لویــو مجلســونو کښی ئې گډون کاوه .

تاسو بهدا ثابتهوی پههرمملکت کښی هرهغهپروژه چی نتیجهئې نامطلوبه وی اویا دهغه پهتکمیل کښی ځنډونه او یا ناکامی منځته راځی یواځنی عامل ئې په لگښتونو کښی اسراف دی.

نواوس لههمدې کبلهدی چی دبودجی به تنظیمولو کښی نوی روشونه یعنی دبودجی تنظیم د کلونود پلان پهشکل اودبودجی تنظیم دعملیاتو پهشکل اواساس تربحث لاندی نیول کیږی.

۱: دبودجی تنظیم دپلان پهشکل .
۲: دبودجی تنظیم دعملیاتو لهرویه .

باید بودجه په هرمملکت کښی ددولت د وظایفو اود ټولو فعالیتونو په اساس جوړهشی چی د هغی درکول اوپوهیدل د پارلمان غړو، لیکوالو اوعامه خلکوته ډیره اسانه وی اوهرحکومت بهئې د کاغذ پهمخ باندی پهډیرښه صورت اواسانهتوگه پهلږوخت کښی تنظیم کاندی .

پښتو کوټنکی تیمورشاه (صالحی):

# په افغانستان کښې د مواصلاتو نقش

بله لویه او مهمه لاره چې د کندهار څخه تر هرات او شوروي اتحاد د سرحد و پورې غزول شوې ده (۶۸۰) کیلو متره اوږده ده. الې لرې د غه مهمه لاره چې په د جنوبي او لویدیځو لارو کې د شوروي اتحاد په کومک سره

بشپړه شوې ده، لګښت یې (۱۱۹) ملیونه ډالره دی چې (۷۵۱) ملیونه افغانۍ کیږي د اسلام کلا د لارې جوړیدل چې په دریم پنځه کلن پلان کښې په نظر کښې نیول شوي ؤ د آسیا د لویو لارو څخه ګڼل کیږي د دې مهمې لارې سروې او نقشه اخستل په (۱۹۶۳) کښې او ساختماني

کارونه یې د (۱۹۶۶) د اګست په (۲۷) د امریکا د بین المللي انکشافي مؤسسې په مرسته شروع شول د لارې چې (۱۲۴) کیلو متره اوږده ده سوړنې (۹،۹۰) متره پخته کاري او (۴،۲۰) متره اسفالت شویدی د دې

مهمې لارې په اوږدو کښې د (۱۵۳) مترو په اندازه پو کانکریټي پل پر هرې رود وډان شوي او (۲۲۴) پلچکان جوړ شویدي او د دې پروژې د مجموعي لګښتونو څخه (۲۶۰) زره ډالره پر مقدماتي سروې (۶۸۱۲۹) ډالره د نهائي سروې او د ساختماني کار د مراقبت لپاره او

(۹۲۸۷۷۱۲) ډالره د پروژې په ساختماني چارو کښې په مصرف رسیدلي دي چې په دې ترتیب د هغه عمومي لګښت (۱۰۲۳۰۰۰۲) ډالرو ته رسیدلي دي په داسې کال کښې چې ټول لګښت یې لومړی (۹۲،۶۵) ملیونه ډالره یعنې د واقعي لګښتونو څخه زيات اټکل شوي ؤ د دې لګښتونو

د جملې څخه (۹۴۲۲۹۰) ډالره د امریکا د مرستو د لارې (۸۷۶۷۱۲) ډالره د افغانستان د حکومت له خوا او (۸۴۱۱۰۰) ډالره د امریکې د متحده ایالاتو د خلکو پیښت کلنۍ پور د جملې څخه دي د دې پروژې په جوړولو کې

د افغاني کارګرانو تر ټولو زيات شمیر (۱۴۷۰) تنه او کم شمیر (۹۵۴) تنه شمیرل شوي دي په داسې حال کښې چې د امریکائي متخصصینو شمیر (۲۷۹) تنه او د نورو هیوادو (۳۱) تنه ؤ.

په هر صورت د دغې ګټورې ساختماني پروژې کار

لس میاشتې د مخه تر ټاکلې مودې یعنې د (۱۹۶۷) کال د اکتوبر په (۱۵) نیټه پای ته ورسید.

تر وبلای شو چې اوس افغانستان تر (۲۰۰۰) کیلو مترو

زيات قیر شوي او یا کانکریټي لارې لري چې په لاندې ډول سره د اوږدل کیږي:

هرات ـ اسلام کلا (۱۲۴) کیلو متره (۱۹۶۷)

کابل ـ شیرخان بندر (۴۰۵) کیلو متره (۱۹۶۵)

کابل ـ کندهار سپین بولدک (۶۰۴) کیلو متره (۱۹۶۶)

کابل ـ تورخم (۲۳۲) کیلو متره (۱۹۶۵)

کندهار ـ تورغونډۍ (۶۸۰) کیلو متره (۱۹۶۴)

پلخمري ـ مزارشریف، تاشقرغان (۳۶۱) کیلو متره

چې اوس هم کار پر کیږي.

د دغو لارو په جوړولو سره د افغانستان ډیر مهم ښارونه یو د بل سره و نښلول شول سربیره پر دغو لارو د کوچنیو او فرعي لارو د وهمه او دریمه درجه سړکونه د جوړولو په برخه کښې هم تصمیم نیول شوی دی د کار تر ټولو لومړی هغو سیمو ته متوجه دی چې د لویې لارو د کې یو څخه لیرې پر تې او د ادارې تأسیساتو، تشکیلاتو خارجي او انفرادي مواصلاتو څخه ګوښه پاته شویدي

د ډیر وخت څخه د اښکاره شویده چې داسې پلان په لاس کښې دی چې د آسیا د بین المللي لارو په استفاده یو مستقیمه رابطه د هیواد د ختیځو او لویدیځو سیمو ترمنځ د هندوکش څخه په تیریدو سره شروع شي خو بیا هم ډیر مالي او تخنیکي مشکلات په مخ کښې سته.

د سړکو د جوړولو اصلاح او تقوی پروګرام په افغانستان کښې ډیر مهم دی د دې جهته چې د یوې خوا په هیواد کښې د اوسپنې لار نشته او د بلې خوا د دې خاورې رودونه د مالونو د وړلو او راوړلو د پاره مساعد نه دي.

د هیواد د دغو نیو خصوصیتو په نظر کې نیولو سره هوائي ترافیک هم په دغه هکله ډیر فعال نقش لوبولی دی په (۱۹۵۵) کې یو افغاني هوائي شرکت (د آریانا) په نامه

ترانسپورټ سره چې ورو وروسته ئې خپل فعالیت د (ډي سي) دري الوتکو په واسطه شروع کړ.

په عین حال کښې دهوائي الوتنو د انکشاف په منظور دامریکا دمتحده ایالاتو سره بوتړون وسو ددغه تړون سره سم د امریکا بین المللي انکشافي

مؤسسې (۹۵۰۰۰۰۰) ډالره د ګرانټ په شکل دافغانستان ددولت په اختیار کښې کښېښود او د امریکا هوائي شرکت چې پان امریکن په نامه یادیږي د (۱۹۵۷) کال په اپریل کښې په آریانا افغان هوائي شرکت کښې په

سلو کې د (۴۹) سهمونو د رلو دلو سره د دوو نورو تړونو شریک شو په لاس لیک کې چې د (۱۹۵۹) کال د مې په میاشت کې وسو دامریکا دولت خپل پور ژمونږ دهوائي پروژو دانکشاف په منظور د (۲۱) ملیونو

ډالرو ته ورساوه او سربیره پردې (۵) ملیونه ډالره ئې دپور په ډول افغانستان ته ورکړل دغه کومکونه په لومړي ګام کښې دنوي ماشینو د رانیولو دهوائي

میدانو دجوړولو او د تخنیکي پرسونل درو زلو دپاره منبع ته راغلل په دغه وخت کښې دآریانا افغان هوائي شرکت ددوه (ډي سي شپږ) الوتکې ددرې (ډي سي څلور) څلور (ډي سي درې) او یوه (۴۴) د کانوېرا الوتکې

رانیولې دي دآریانا افغان هوائي شرکت تېر کال یوه لویه مسافر وړونکې (۷۰۷) جټ الوتکه دامریکا د متحده ایالاتو څخه رانیوله او په بین المللي الوتنو کې

یعنې هغو کرښو کښې چې د کابل، تهران، بیروت انقره فرانکفورټ، لندن او ماسکو تر منځ دي په کار واچوله.

په لومړني پنځه کلن پلان کښې بوزیات شمیر هوائي میدانونه دهغو دمربوطو دستګاوو سره جوړ شول چې د

هغو دجملې څخه یو هم کابل ته نژدې د بګرام هوائي میدان دی، د کابل بین المللي هوائي میدان د شوروي اتحاد په مرسته په ۱۹۶۳ کال کښې جوړ او د الوتنو ډه وګرځید.

د کابل مرکزي موقعیت دا ایجابوله چې خارجي الوتنې په هند، پاکستان، ایران، لبنان او په اوسني وخت کښې د اروپا د قارې او همدارنګه د افغانستان داخلي الوتنې منبع تعداشي سربیره پردي د کابل هوائي

میدان د شوروي اتحاد د ایروفلوټ الوتکو دهوائي

الوتنو دپاره چې د ماسکو څخه حرکت کوي او هم د اروپا دهوائي کرښو سره هم ارتباط پیدا کوي.

د کندهار بین المللي هوائي ډګر دامریکا دمتحده ایالاتو په مرسته پای ته ورسید، ددغه میدان څخه د جټ الوتکو دپاره استفاده کیدای شي. دغه میدان د هغو ساختمانو د جملې څخه دي چې په عمومي توګه

تر اوسه دهغه څخه اعظمي استفاده نه ده شوې، ددې جهته چې ددغه میدان اقتصادي او تخنیکي اساسات دا سې جوړ شوي دي چې د ډیرو اروپائي بین المللي هوائي شرکتو توجه چې د ختیځ او آسیا د جنوب ختیځ و خواته د کراچي له لارې الوتنې کوي را جلب کړي.

په هرحال د دا هوائي ډګر چې بخپلو تخنیکي وسایلو او مناسب موقعیت ځائي دهیواد دآینده هوائي چارو په انکشاف کښې لوی سهم ولري د کندهار بین المللي هوائي ډګر ټول لګښت ۱۲۹ ملیون ډالرو ته رسیږي.

د سیمه ایزي هوائي الوتنو دپاره په کندز، هرات مزار شریف، جلال آباد، غزني او لښکرګاه کښې عصري هوائي میدانونه جوړ شوي دي.

د باختر افغان د الوتنې د مؤسسې ترانسپورټ دملکي هوائي ریاست تر چوکاټ لاندې په ۱۹۶۷-۱۹۶۸ کال کښې ددوې دانې (تربو) جټ الوتکې د کاناډا څخه رانیولې او هم ئې یو شمیر کوچني هوائي میدانونه په

بدخشان، بامیان، روزګان، غور او نیمروز کښې چې د طبیعي او اقتصادي موانعو په نسبت دهیواد د پایتخت او نورو صنعتي او تجارتي مرکزونو څخه لیري واقع دي شروع شول.

د لومړي پنځکلن پلان د تطبیق په مرحله کښې د ۱۹۵۶-۱۹۶۱ حمل و نقل او مواصلات په جدي توګه په نظر کښې نیول سوي وه پدې پلان کښې په مجموعه توګه ۱۵ ملیارده افغانۍ یعنې ددې چنده لګښت محاسبه شو

او هغه هم پداسې حال کښې چې تقریباً په سلو کښې ۶۰ لګښت په لومړي پنځکلن پلان کښې د حمل و نقل د کرښو او سړکونو په جوړولو کښې لګیدلی دی.

افغانستان دلومړي پنځکلن پلان د تمویل او دحیثو کریدتو ورکولو دپاره ۲۱۷ ملیونه ډالره دامریکا څخه حاصل کړه خو یوازې ۱۹۱ ملیونه ډالره دهغو

«پاته په ۲۵ مخ کې»

# په جراحي عمل د روماتیزم علاج

تر اوسه پورې لا هم زیات هغه کسان چې په روماتیزم اخته دي نه پوهیږم چې په جراحي عمل د روماتیزم علاج کیږي.

په لویدیځ المان کښې د ماینتز د پوهنځي د جراحي کلینیک اوس د دا ډول جراحیو مرکز دی.

د هغه بریالیتوبونو په تعقیب چې له کبله حاصل شوي دي په نظر کښې دي چې د ویسبادن او کرویتز باغ د کانۍ او بو د دوو چینو نو ترمنځ په یو مناسبه سیمه کې

یو مخصوص کلینیک د روماتیزم د علاج دپاره جوړ کړي، او په هغه ځای کې به ډاکتران د کولای شي د روماتیزم د علاج دپاره د بیلو بیلو طریقو او په دغه جمله کې د جراحي څخه کار واخلي.

د روماتیزم د جراحي په عمل کې، مخاطي غشاء ناروغ د مفصل څخه جلا کوي او په دې ډول د مفصل د رنځ او درد دوام مخنیول کیږي.

د ماینتز د پوهنځي په کلینیک کې په تجربه رسیدلی ده چې هر کله په یو مفصل باندې د جراحي عمل اجراء شي پر نورو مفصلو نو باندې چې د روماتیزم درد ولري ښه اغیزه کوي.

په ماینتز کې چې کوم جراحي شوي دي د روماتیزم د درد نه ئې د منځه وړي دي. حتی په هغه وخت کې چې د روماتیزم د ډیر مزمن او ځوکلن وي او د مخاطي غشا

ایسته کول د غه درد د منځه یونه وړای شي د مصنوعي مفاصلو په واسطه ئې علاج کوي، د ځکه تیر کال یوازې د ګوتو ۸۰ مصنوعي مفصلونه پیوند شوي دي.

د غه رنګه یوزیات شمیر ناروغان د پلاستیکي او فلزي مفصلونو په واسطه چې په ورنو کښې ئې پیوند شوي دي د روماتیزم د درد او تکلیف څخه خلاص شویدي.

(د ۴۴ مخ پاته)

څخه مصرف شول:

د لومړي پنځکلن پلان په پای کښې د افغانستان د دولت د اوږدې مودې کریډت:

د یو رونو مجموعه ۲۱۶۹۳۲۴۰۰ ډالره.
مصرف شوي ۱۹۰۷۰۷۶۶۱ »
د تادیې وړ ۲۸۱۹٤٤۲٤ »

د ۱۹۶۲ کال په جنوري کښې پاته ۱۶۲۵۱۳۲۳۷ ډالره.

همدا رنګه د دوهم پنځکلن پلان په جریان کښې ۶۷-۱۹۶۲ د هیواد مواصلاتو ته پاملرنه وشوه یعني چې د دغه پلان د ټولو انکشافي لګښتونو د جملې څخه چې د ۲۵ ملیارد و افغانیو سره برابر دی ۹،۶ ملیارده یعنې په سلو کښې ۳۸ ئې د مواصلاتي سیستم په ساختمان کښې مصرف شوي دي.

افغانستان د پنځکلن پلان د شروع او مالي پروژو د انکشاف په تطبیق کښې د خارجي کومکو او پورو څخه مستفید شوی دی.

د افغانستان دولت پخپل بیطرفه سیاست او د هیواد د انکشاف په لار او آبادي کښې د هغو وسایلو په لرلو سره چې په لاس کښې ئې دي پیاهم وکړای شو چې د نړۍ د صنعتي دولتو څخه لازم کریډتونه او کومکونه په لاس راوړي.

شوروي اتحاد، د امریکا متحده ایالاتو او د المان اتحادي جمهوریت خو په هغو کښې د دغو پروژو په انکشاف کښې فعاله برخه اخیستې ده.

همدغه رنګه د پورته حقایقو په رڼا کښې ویلای شو چې دغه دوره په افغانستان کښې د مواصلاتي لارو په برمخ تګ کښې یو لوی انقلاب و.　　«پای»

# دنورو افکار

هغه څوک چې پر نورو باندې اعتماد ونه لري تاسو هم باور دور باندې مه کوي.　　«شکسپیر»

نیکمرغه هغه څوک دي چې په سختیو او بده ورځ کښې خپل ځان و نه بایلي.　　«پاسکال»

د زړښت او سپین ږیر توب د شپې لپاره ښائي چې د ځوانۍ په ورځ کښې ذخیره پیدا کړو.

«افلاطون»

# د غزنوي محمود تر قوماندې

## لاندې چې افغانان

### دې همه بلا پر هند ورغله

اود لرګو پر شاو خوا دا
وځړېدله پر هر و ځو قدمو به
یو وار د لرګو کوټې ته ورننوتې
سوله او هره بلا به ئې د سنو بریوه

خاشه ځانته سره اخیستله بدې
ډول ئې خوخاشې واخیستلې او
به هغه لګیدلی مشعل ئې ولګولی
بیا بېداسې حال کښې چې د مړګ
سرود ئې وایه د لرګو کوټې ته ئې
ځو ځایه دا لګیدلی خاشې ور
وغورځولې .

ځکه چې لرګي اکثر وچ
او ځینې غوړ هم وه ډېر ژر ئې
اور واخیست خو شېبه وروسته اور لمبه
ځنې پورته سوه .

هغه متین او باعزمه (جیپال)
د دود او لمبې په منځ کښې ورک
سو ددې دپاره چې که (جیپال)
مقاومت دلاسه ورکی او نارې و
بغارې جوړې کړې د ډولو سورنا
به شغولو هم بیل وسو ځو دده
نارې وا نه وریدلې سي .

دده مقاومت ته حاضرینو
تعجب وکی او هیڅ فریاد ئې وانه
وریدل سو .

مرموزې ښځې هغسې سرود
وایه د ډولو سورنا شغ فضا ته پولي
ده کراره کراره دود او لمبې
سره ورتللې چې آخر ئې دلرګو

د کوټې ځنګه یوه سره غورځنګه
جوړه کړه د لته پولې شغ چې هغه
د اور د لمبې شغ هم پیدا سو او
لمبه مخ پر آسمان روهی وه ځه آن
وروسته د ډولو سورنا شغ

و دروول سو ، او ټوله حاضرین
بدې انتظار وه چې په اور کښې د
(جیپال) د سر د چاودلو شغ
واوریدل سي چې دا به دده د
ګناهانو د بخښلو او دده د
پاکیدو نښه وي .

ټوله خلك هك حیران ولاړ
سترګي دا وښکوډ کی او د غم و
خواشینی آثار د ټولو په بڼو کښې
ووا ښکاره وه . پدې وخت کښې
د چاودلو یو شغ په اور کښې
واوریدل سو او ټوله وپوهیدل
چې جیپال تطهیر سو .

ترځو چې دغه اور او جیپال
په ایرو تبدیلیدل هیڅوك له خپله
ځایه ونه ښوریدل او ټوله په یو
جهان چپتیا کښې ولاړ وه کله چې
اور مړ سو او په ایرو کښې د کتل
سوه پوازې هغه د زړو چوکی
پاته وه

د جیپال زوی (آنندپال) د
چوکی وخواته ورتیر سو او په
لوړ شغ ئې وویل چې :
وروڼو !

هیله لرم چې دا زما دپلار فدا کاری
او قربانی قبوله وګرځي ولاړ سی
سپاهیان آماده کړئ چې سبا سهار پر
دښمن ورسو (سلطان محمود) هم باید
ډغسې به اور کښې وسوځل سی .

افسران ، سرداران او ټوله حاضرین
چې ددې پېښې تر سخت تاثیر لاندې
راغلي وه دا ځای ئې پرېښودی او د
غچ اخیستلو په نیت روان سوه چې دخپلو
لښکرو سره یوځای سی او د جګړې په هغه
تیاری او حمله کښې برخه واخلي ګومه
چې دافغان محمود پر لښکرو به کیږي .

(آنندپال) دهغې مرموزې ښځې
وخواته ورغی دا ئې تر لاس و نیول او د
خیمې وخواته ئې بوتله او لدې ځنګه ئې
وغوښتل چې مخ دې لغ کړه .

ښځې آنندپال ته وویل چې :
ای امیره ! ته پدې پوهسه چې زما
بڼه ښکلې نه ده زما لیدل به ستا د پاره
بد مرغی راولي ستا پلار چې هر وخت زه
لیدلم نتیجه ئې دا سوه چې په جګړه
کښې ئې ماتې وخوړله که ته هم په دې
باره کښې ټینګار وکړې او زما مخ
ووینې ښایي چې په هغه شوم سرنوشت به
اخته سی لکه پلار چې دې ور سره مخامخ
سو ، په خبره دا ده چې د پلار دعاقبت
څخه عبرت واخلي .

د ښځې دې وضعیت د آنندپال سوداو
نوره هم بسې زیاته کړه لیکن لدې بېرې

چی رښتیا به د یوه شوم عاقبت سره مخامخ سی په ډېر زحمت لدې خبری څخه تیر سو چی د مرموزی ښځی مخ دی وویني.

آننډپال چی له یوی خوا د پلار د مرگ په غم اخته ؤ د بلی خوا ئی بدې کښی فکر بند ؤ چی په څه ډول د دې ښځی مخ وویني ځکه دده دا خیال ؤ چی دا ښځه به بد رنگه وی او بر خلاف د دې دوینا به یوه ډېره ښکلی ښځه وی.

به عین حال کښی د آننډپال سره دا ویره هم وه چی د ښځی به لیدلو به رښتیا د یوه شوم سرنوشت سره مخامخ سی بالاخره ئی دا سی تصمیم و نیوی کله چی دده هندی سپاهیان د جگړې ډگر ته ځی دغه ښځه دی هم پر هغه فیل چی آننډپال باندی سپرېږی کښېنول سی.

نو ئی پر فیل باندی یو زرین تخت کښېښاوه او دځلو رو نېزو په توسط ئی یو سایوان هم پر نصب کی او بدې ډول ئی آننډپال او مخ پټی ښځی ته ځای ورجوړ کی.

هندی ځوانان او لښکری افسران چی د جیپال مرگ خروښولی وه ډېر تاوده د افغانانو د لښکرو د مقابلی ته په تیاری بوخت وه.

د بلی خوا غزنوی محمود چی د جاسوسانو په وسیله ددې تیاری او آمادگی څخه اطلاع درلوده نو ځلو ښت ورځی دمخه ئی خپلو لښکر د ته امر کړی ؤ چی پر خپله اردو گاه باندی یو ژور خندق راوگرځوی ځکه که دا خر وخېدلی لښکر یان چی تعداد ئی دمحمود تر سپاهیانو (یو په پنځه او یا) بالا ؤ پر افغانی سپاهیانو ورڅی سی میادا چی دمانی سره به مخامخ سی

بالاخره جگړه ونښتل او د افغانی زړورو ځوانانو د ورڅی لکه باران پر هندی سپاهیانو شروع سول.

د مقابل طرف څخه هم ډېره سخته حمله روانه وه.

آننډپال خپلو لښکرو ته وویل چی هر څه مو پلاس درځی خندق ته ئی اچوی چی دمحمود د لښکر د خوا ته د تیریدو لاره وسی.

سره ددغه شلیك چی د افغانانو له خوا پر هندی لښکرو شروع ؤ دوی سېروته پر سرو نیولی وه او په خندق کښی ئی لاری د کړی، جگړه خپل نهائی شدت ته ورسیدل او له دواړو خواؤ انسانان لکه واښه چی ریبل کیږی پر مځکه لویدل.

آننډپال پر یوه لوی فیل سپور هغه مرموزه ښځه ئی ترشا سپره وه د جگړې پاتوماننده بوخت او د خپلو سپاهیانو د پری موقع ته ئی انتظار کېښ.

ښځی چی پر فیل ئی د سایوان یوې ستنی ته تکیه کړی وه په ډېر حیرت او تعجب کی وه چی آننډپال ولی دا له ځانه سره گرزوی.

د آننډپال په عین حال کښی دا خبره په زړه کښی وه چی دا ښځه به کله لغ مخ ووینم.

د جگړې په ډگر کښی چی ځوانان د دواړو خواؤ راچپه کیدل او دوینو رود جاری ؤ یوه ډېره وحشتناکه منظره ئی په وجود راوستلی وه.

غزنوی سلطان محمود چی د احال ئی دا قتلگاه ته متوجه ؤ د آس څخه را کښته سو او د لایزال خدای په وړاندی ئی سر پر سجده کښېښوی او دلوی خدای څخه ئی د بری التجا کول.

لدې وروسته ئی بیله بیری په ډېره میړانه پښه پر آس واړول او خپلو سپاره لښکریانو ته ورغی او دوی ئی یوه زړوره پرغل ته آماده کړه او د هغه پیاده سپاهیانو په مرسته ئی چی اکه پسونه وژل کیدل ورو ستل.

افغانی ځوانان چی په لومړی سر کښی لا د بری د باره هند ته ورغلی وه د جگړې قوله وس ئی په کار واچاوه جگړه هغه حد ته رسیدلی وه چی همدغه ورځ ئی آخره وه، مات او فاتح به همدی ورځ معلومیدی.

آننډپال فتح دخپلی خوا په نصیب بللی وه او دا ئی یقین ؤ چی افغانان مات سول ځکه ده چی د جگړې صحنی ته نظر واچاوه افغانی لښکریان ئی پخپلو لښکریانو کښی ورك وه.

اوس نو دا وخت ؤ چی که آننډپال د هغی مرموزی ښځی مخ ووینی څه بد مرغی به ونه وینی او ددې خبری موقع تیره سویده نو مخ ئی د ښځی ته وروگرځاوه او کوښښ ئی وکی چی حجاب څنی یوړته کی پر فیل سر پېره د دوی کش مکش شروع سو ښځی کوښښ کاوه چی آننډپال لدی کاره منصرف کی ولی د آننډپال قوله کوښښ پدی کښی ؤ چی حتماً به ښځه وینی.

پدی کشمکش کښی د سایوان یوه ستن د تخت څخه خطا سوه او د فیل پر بدن دا سی ونښتل چی هغه ئی خوږا خوږ کی. فیل په ځغاسته شروع وکړه او پدا سی حال کښی چی شائی جگړی

(نور په ۳۰ مخ کښی)

د مولانا «حبیبي» تتبع او لیکنه:

# دشطرنج او نرد اصل واضع

له ډېره وخته څخه په اوسني او پخوانیو خاصو او عامو انسانانو کې د شطرنج او نرد لوبې باب، او د هر صنف وګړي د خپل ساعت تېري او تفنن دپاره د دې بازۍ کوي او خوښ ئې اري.

لیکن ما ته په ځینو وختو کې چې ځینې انسانان په بازۍ د شطرنج ډېر لګیا او چټو وینم د آیت شریف مصداق را په یاد شي.

«من عمل صالحاً فلنفسه ومن اساء فعلیها»

په حقیقت کې د آیت شریف ممکن ډېر حکم په بر کې ولري لیکن په باب دی کې د ذکر ئې سېږي

اندېږي چې برتله ئې کې چې زه ښه کوم او که بد؟

انسانان خپل اعمال او افعال په مشغلې قوله نه ښه بللای شي او نه بدې او کله چې د آیت شریف

چا اورېدلی او په یاد کې باته وي ممکن دوباره له تمیز څخه د ښه له بدو څخه هیڅکله غافل نه و بلل شي. ځکه چې یو باعث که انسان ته وجود ولري کله

بیا داسې کېږي چې انسان خپل عمل د ښه او بدو له قراره بې-کنټروله پرېږدي.

اوس له دې وروسته غواړو د هر صنف د انسانانو دپاره په باب کې د شطرنج او نرد یو څه مفصل ولیکو په تېره دا جوته کو چې دلته په دې لوبو کې شریعت څه فرمائي او تاریخ دلته څه دی؛ او دا لوبې د چا څخه بیا تر اوسه په موږ کې را نقل او موږ ته ئې د کوم علت

او د کوم حرمت د مخه څخه پالو او پر لګیا یو؟

په موږ کې طبقه د خواصو البته په دې لار کې علمي، تاریخي معلومات ښائي ولري او د دې لوبو مصلحت او

فساد هم په شرعي او اخلاقي لامل ورته معلوم وي لیکن عوام لکه نور کارونه چې یوازې د خپل بې لګامه شوق او ذوق په اثر کوي او مني، چې نور نو ښه او بدو ته د هغو نه ملتفت کېږي ورد دې سي

چې په دې باب کې هم بیله خپله عامیانه ذوق بله مدعا او غرض هیڅ و نلري. نو د دې دپاره چې عوام هم یو څه پدې ډول لوبو د شرعي او تاریخي نقطه نظره خبر شي دا دی دلته زما معلومات او

تتبع ممکن په حدودو کې د قناعت د عامو وګړو یو څه خدمت کړای شي اوس تاریخي برخه د شطرنج او نرد دلته وړاوي:

عجب نو مې د واضع د شطرنج صحته بن داهر، او په اصح روایت یو حکیم هندي و چې دپاره د پلمهیت ئې وضع کې او د وضع منشأ ئې هم دا وه

که چېرې ملوک فارس فخر وکړي پر ملوک هند په وضع کولو د نرد له طرفه څخه د اردشیر پادشاه او په دغه سبب نوم د نرد شیر د بازۍ دده په نسبت

وټاکل شو وروسته له دې څخه د شطرنج وضع دغه نوموړي حکیم وکړه او حکم ئې وکې قولو حکماوو ته د هغه عصر د شطرنج په فضیلت کښې په نرد شېر باندې او پادشاه هم افتخار وکې له دې څخه چې دده دپاره شطرنج وضع شو وروسته پادشاه حکیم واضع ته وویل: په دې عربي تعبیر «تمن علي ما ترید» یعنې په عوض کې د شطرنج هره تمنا چې لرې له ما څخه ئې وغواړه. حکیم جواب ورکې چې حکم دی پادشاه وکې چې په اول خانو کې د دهم وي او دغه د دهمو نه دی یو په دوه شي تر پایه پورې د خانو. پادشاه تمنا د حکیم ډېره سپکه و بلله او وې ویل: عقل دې زما د را فاسد کې هغه چې تا وکړه. وزیر وویل: ای پادشاه برېږده چې طلب د حکیم دو نه دې چې ستا خزانې او خزائن د ملوکو قوله هلته صرفېږي.

پادشاه په اورېدو د وزیر د کلام په تعجب کې شو او دې وویل حکیم ته چې ستا تمنا عجب تره ده ستا تر صنعت او ځینې روایت کوي چې نوموړي حکیم په بدل کې د دراهیمو ئې د غنمو دانې درلودې. څو چې آخره خانه د بساط د شطرنج متفرقه شوه غنمو ته د اوو اقلیمو، او ځینې بیا فضیلت ورکوي نرد ته پر شطرنج له دې جهته چې د نرد واضع ئې یو مثل وګرځاوه دپاره د دنیا، نو ئې دولس خانې وګړي لکه شهور

د کال او د ویشل شوی څلور دو قسموته په دول د فصلونو د کال او شمیر د څکرانو دده د برش دی لکه د میاشتی ورځی او هغه

ویشلی سپینو او تورو ته لکه د میاشتی، ورځی، شپی او شمیر د نګینو د هغه شپږ دی لکه جهات سته او شمیر د هر یخوا د نقطو د

نګینو د هغه اوه دی لکه د مځکی طبقی، د آسمان، د افلاکو، سیاره نجوم، ایام الاسبوع او شمیر د هغه چی حاصلیږی له هغه نګینو څخه د قلت او کثرت لکه قضائی او قدرتی ،

د بازی ګر تصرف څرګندوی حسن اختیار دده، او دده عقل او دوه جودت او زیرکی تر داسی حده بو ئی چی د شطرنج بازی، په پای کښی له نرد سره شراکت پیدا کی، والله اعلم.

## د شطرنج د تسمیی وجه

شترنګ په ګاف فارسی بر وزن او معنی د شطرنج او دا یو معروفه او مشهوره بازی ده چی

حکیم دا هر «هندی» باز وی دده په زمانه کښی د نوشیروان اختراع کړیده.

(ابوزرجمهر) په برابری کښی ددې بازی (نرد) جوړه کی او شطرنج معرب، د هغه دی اود محققینو په نز د نرد اشاره

(جبر ته) او شطرنج (اختیار ته) ده او خلك ئی یوه ګیاه هم بولی او هغه داسی ګیاه ده چی اکثراً د چین څخه راځی او دا دی پته توی چی شطرنج په هندی کښی د چترنګ اصل ؤ . په زور د فارسی

جیم او په پیښ د تای قرشت او په زور د رای مهمله او د نون په سکون او د فارسی کاف په سکون چی معنی ئی څلور ګوټی اندامونه او هغه عبارت له فیل، آس، او په

او پیاده څخه بلل کیږی، او فارسیان پیښ (د تا) حذفوی شطرنګ چی معرب د شطرنج دی وائی او بولی ئی.

په نفایس الفنون کښی لیکی چی هغه بعینه دانه لیکو: چی واضع د شطرنج صصته بن داهر چی یو د هندی حکما و څخه دی او څرګندون ئی الجلاج کړیدی چی دده له زامنو څخه ؤ.

او بل سبب هم دا ؤ چی ملك ته دملو کو د هند چی په محاربه او په جهانګیری او مبارزت اخته ؤ یو علت پیښ شو چی بر آس سپر بدلای

نه وای، او ډیر متعددو نو ئی حکما او زیرکان حاضر کړه او ورته وی ویل: غواړم چی یو تدبیر یوه چاره، یو فکر وکړی چی

بیله دې څخه چی بر آس سپور شم په حرب او کارزار سره مشغول سم. او لدی علت څخه خلاص سم الجلاج وویل: تدبیر ددې کار له ما څخه دی څو چی ولاړ شو او کورته

ولاړی او شطرنج ئی حضور ته د ملك راوړی، او کیفیت د لعب ئی ورده ته عرض کی ملك لره دا وضعیت ډیر خوښ شو او ددی ئی

و ناز اوه او له ده څخه ئی دا برد او باخت زده کی همیشه په مشغول ؤ څو چی وفات شو او له ده څخه یو څوك چی د تخت لائق وی نشو پاته مګر یوه ښځه چی دده څخه حامله

وه او هغه ښځه په اتفاق د مهترانو د ملك په تدبیر د مملکت مشغوله سوه څو چی وعده د وضع حمل راورسیده او زوی ئی وزیږاوه.

ملکې نوم دده شاه کښیښودی او تربیت ئی کاوه چی لوی سو محاربی ئی شروع کړی او څو له مملکت د پلار ئی په تصرف کښی راوستی او هر یخوا ته

چی بی قصد ؤ فتح او ظفر دده ؤ، پس له یو مدت څخه په څینو محاربو کښی مجروح شو او په هغه سبب وفات سو او هیچا لره د مجال نه ؤ چی حال دده

ملکې ته عرض کی یو د لوبانو څخه چی د شطرنج په بازی خبر ؤ یو مدوخ ده ته ورغی او ددی ئی ډیر ملول ولیدی او سبب د ملالت او تکدر دده د زړه ئی سوال

وکی ملکې وویل ډیر مدت کیږی چی د شاه یو خبر لاهم نه راځی او معلومه نده چی دده حال به وځه ته رسیدلی وی. دغه لوی سړی وویل: ملکې ته دی معلومه وی

چی اشغال د پادشاهی او مهمات د جهان ګیری له مشقت څخه د سفر او له سدت څخه د غربت او له هدت څخه د تکلیف چاره نلری او په دې اثنا کښی د محاوری

حکایت د لعب د شطرنج ئی ضمناً وکی او ملکې لره لدې څخه یو شغف حاصل سو او لده څخه ئی د غوښتل چی شطرنج حاضر کی او دی ته ئی ورزده کی څو چی هغه شطرنج حاضر کی بازی د شطرنج

ئی ورو ښوو له او په هغه بازی ئی اخته کی تر څو چی په باخت کښی استوار سو یوه روځ ئی له ده سره شطرنج کاوه ملکه غالبه سوه نا ببره شاه بو ر ته سو

څکه چی شاه څای ته دلو د ملکې وویل شاه مات دی هغه لوی سړی وویل ملکې ته دی بقا وی ډیر وخت کیږی چی دا حالت پیښ سو او چا لره هیڅ تهدت نه ؤ

چي دا خبر دي اعلام کي څو چي د ملکې څخه پخپله تلفظ وشو ملکې ته احوال دذوي معلوم سو او په واسطه د شطرنج هغه هاتله واقعه

اسانه سوه او لدغه وخت څخه شطرنج دهند په هیاد کښې نشر سو لیکن دایران په هیواد کښې څوك بدې بازی مطلق نپوهیده

او داسی هم ویل سوي دي چي سبب دراوړلو د شطرنج ایران ته داؤ چي ملك نوشیروان ته داو رسیدی او آوازه د فضل او دانش د حکماؤ

چي دده ملازمین وه اطرافو ته منتشره سوه يو دپادشاهانو څخه دهند چي دده معاصرؤ په ډول دامتحان ئې آلات دشطرنج سره

د تحفو او هديو نوشیروان ته ولیږل او نامه ئې ولیکله چي زموږ یو ډول زیرکانو بدغه ترتیب او وضع استخراج کړی دی نو که

دهغه ځای اوضاع داسی وی لکه ددې ځای دا و لیږی نوشیروان او ملازمانو دده څکه چي دا وضع ئې نه وه لیدلی ادې عهدې څخه نه

وواته او بزرجمهر حکیم په هغه زمان کښې په بند کښې ؤ وروسته ئې تاسف وکی او دی ئې وغوښتی هغه وخت چي بزرجمهر حاضر سو

نوشیروان له ده څخه عذر وغوښتی بزرجمهر وویل: پادشاه چي پر بنده په غضب سی باید له ذه څخه بوشی دغوالړی چي بیرته رحیم

سی او هغه شي په بیرته ورکی.

نوشیروان خجل سو.

بزرجمهر وویل: دپادشاه په دولت کښې تراوسه په ستر گو کښې زما بو څه روښنائی لا پاته ده.

نوشیروان پدې خوشحال سو او شکریه ئې وکړه او هغه سړی ئې طلب کی هر کله چي راغی او شطرنج ئې بزرجمهر ته عرض کی.

بزرجمهر وویل:

داسه چي ده ئې له تا سره وباذم.

وروسته هغه سړی راغی يو نیمی شطرنج ئې کښېښودی او

بزرجمهر هم دده په مقابل کښېښودی.

اول لاس او دوهم لاس ئې قایم کی (پوره کی) او غالب سو

وروسته کورته ولاړی او «نرد» ئې استخراج کی.

ځینی وایي: نرد د څخه تر شطرنج هم ؤ لیکن هغه وخت

«کمپتین دوه وه» او لعب د فناه دو خانه ئي وکې او يو کمپتین او پنځه منصوبی نوری چي او س سته دائې پر زیاتی کړی او د هند هیواد ته ئې ولیږلی.

**برهان قاطع:** شطرنج بالکسر و سکون الطاء و کسر الراء المهملین و فتحها و بالسین المهملة راوړیدی اودا

يو معروفه بازی ده اودا حرامه ده په نزد دابو حنیفه او مباح ده په نزد دشافعی پدې عربي عبارت وهو حرام وعند ابی حنیفه ومباح

عندالشافعی اذا لم یکن فی المال خسران وفی الصلوة نسیان وفی اللسان طغیان و المواظبته علیه عنده ایضاً کراهته شدیده.

**عالمگیری:** نرد بالفتح وسکون الراء يو معروفه بازی

او مهره هم ورته وایي او تنې ته دونختی هم وایي او داسی وایي چي نرد د بزرجمهر د اختراعاتو څخه دی.

(پاته لري)

« د۲۷مخ پاته »

## د غزنوی محمود ...

ته وه له ډگره وتښتیدی.

دمحمود سپرو لښکرو چي دپیادو په مرسته پر هندی لښکرو حمله وروړی وه هندی لښکریان ئې دونه پرله خطا کړی وه چي څه قدر پرشاهم تللی وه.

کله چي آنندپال له ډگره ووت دا ددوی دماتی دپاره بوه لویه پلمه سوه. هندی لښکرو چي خپل مشر د تیښتی په حال کښې ولیدی دوی هم به ډیره وارخطائی او داهمه مخ پسی ونیاوه او د (الفرار) نارې ووهل سوې.

دوی وائي: په دې وخت کښې چي آنندپال دمرموزی ښځې مخ ولیدی په همدغه وخت کی ئې لښکرو ماتې وکړه.

ښځه ډیره بدرنگه وه او په لیدو ئې دهمیشه دپاره دخولی خوند خرابیدی آنندپال چي فیل او لښکر دتیښتی په حال کی ولیدل دقهره سره وایشیدی

خنجر ئې راوکیښ او ښځه ئې په څگر کی ووهل، او ځای پر ځای ئې ووژل.

ددې تاریخی واقعی لیکوال وائې چي جیپال ددې ښځې معشوق به او د کی

اچولی ؤ، دی دخپل معشوق دنجات لپاره خپل ځان اورته اچولی او په دغسی بدرنگه اوښتی وه.

ښځی دژوند په آخیر وشیبو کی وویل چي زما ارمان دغه ؤ چي تاسی په بدحال کی ووینم همداؤ چي ستا اوستا دپلار می ډیر بد حالات ولیدل نور ارمان نلرم. (پای)

د یوه ځوانیمرګ پیغام:

# زما د واده شپه

ای ژوندیو انسانانو! مشرانو، ځوانانو، نجونو او هلکانو او ټولو دوستانو! پسله یوه اوږده انتظاره ماته ویل سوی وه چې مانښام دی د واده شپه ده پر دې هیڅوک نه پوهیدل چې مانښام به زه څیری یم، د ورځې د سره زما ټوله دوستان زما د واده په کار لګیا وه. دا هیچا ته نه وه معلومه چې مانښام به زه زوم نه یم او د تور لحد یو بندی به یم.

ماته به ملګرو په خندا د دې شپې مبارکی راکول ما به د وی ته په خندا جواب ورکاوه لیکن په زړه کې می یو ناولی لاس وهل کیدی، ولی چې هر چا ته به می ویل چې شپه لا لیری ده ځکه زه حق په جانب وم. ما انتظار کیښ چې څو ساعته وروسته به می د ناوی کره ورولی په دې نه وم خبر چې تاسې به می وچو دښتو ته بوزی تاسې چې څوک سپاره څوک پیاده راسره واست دلته مو راوستم، هغه ځای ته چې زه او زما ځوانی آرزوګانی ټوله یکښې بندیان سول.

ما خو دا نه وه ویلی چې دلته می راولی، ن شپه خو زما د واده شپه ده، ن شپه هغه د خوشحالۍ شپه وه چې د کلو راهیسې ئی په انتظار کی سوځیدم.

اوس چې ګورم توره تاریکه ده هغه څراغان چې د زوم خونه په روښانه وی دلته ئی نه وینم، هغه تخت چې دوستان ئی وزوم ته ډېر ښایسته ورجوړوی دلته نسته او زه پر وچو خاورو پروت یم.

هغه ګلان مو څه کړه چې زما تخت مو په ښایسته کاوه.

(بابولالی) (خور ښادی) مو ولی و نه ویلی.

هغه خنداوی چې د زړه صمیمیت په ګډوو، هغه خوشحالی چې یو جهان حرکت او حرارت په ګډوو څه سو؟

تاسې ولیدل چې دا ښادی او خوښی د هیچا روزی نه سوه دا ځکه چې زما د واده شپه د غم په شپه را بدله سوه.

مری خو هر څوک لیکن زما مرګ د نورو خلکو د مرګ سره توپیر دراود هغه دا چې هر څوک د واده په شپه نه مری.

دا یوازی زه وم چې د یو جهان هیلو او ارمانو سره تورو خاورو ته راغلم تر دې ټولو ارمانو چې دلته ما د ځان سره راوړی دی دا دی چې کشکی زما مهربانی مور زما د ځوانیمرګی داغ نه وای لیدلی، کشکی خو د دې هغه د شفقت څخه ډک زړه د تورو وینو څخه نه وای ډک سوی زما د مرګ داغ به د مرګ تر ساعته د دې ملګری وی ځکه چې دا مور ده، تاسی مور ښه پیژنی چې پر سر ولمه بوئی ژوند خوښ دی نه دا چې د ځوان زوی مرګ په سترګو و وینی د جهان ټوله مصیبتونه زغملای سی خو د ځوان زوی د مرګ د لیدو توان نه لری په زیاتره بیا چې د زوی د واده شپه ئی وی.

تاسی زما په مرګ د دنیا بیوفائی هم ولیدل چې البته عبرت به ځنې واخلی.

تاسې زما په مرګ دنیا و پیژندل، مور به مو هم ښه ترا پیژندلی وی، دوستان به مو هم پیژندلی وی زما وروستی دعا داده چې پر تاسې دی داسې شپه نه راځی لکه (زما د واده شپه).

عبدالرؤف «منصف»



د کندهار ښاروالی دقیراچولو
دځانګړی یو بلډوزر د فعالیت
په‌حال کی

د کندهار دولتی مطبعه